# بدائع الأفكار لتوحيد المسلمين في الصوم والافطار

مؤلف
استاد الحديث:
فداء محمد المعصومي حفظه الله

# بدائع الافکار لتوحید المسلمین فی الصوم والافطار

تالیف

**استاذ الحدیث فداء محمد المعصومی**

ادام اللہ تعالی خدمتہ للدین المحمدی

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم: بدائع الأفکار لتوحید المسلمین فی الصوم والإفطار

لیکوال: استاذ الحدیث حضرت مولانا فداء محمد المعصومی حفظه الله

کمپوزر: ابن المؤلف عزیز الرحمن

د چاپ کال:

استاذ الجامعه: دار العلوم عربیة صدیقیة سهراب کوټ اکاخیل ټاون

# فهرس الموضوعات

# بسم الله الرحمن الرحیم

## سریزه

تر هر څه له مخه محترمو کتونکو ته، د کتاب موضوع او مقصد په مختصرو الفاظو د تمهید په طرز وړاندې کوم، سې د هر کتونکي تر وار لمخه د کتاب پر هدف علم راسی، د کتاب د لیکلو څخه مې مقصد داده سې له ډیره وخته دا مسئله هر کال واقع کیږی، سې په سعودیه، قطر، افغانستان، او داسې نورو هیوادونو کې د میاشتې رمضان د لیدلو اعلان وسی، پاکستان د دوي په رؤیت عمل نه کوی. او همدغه رنګه د میاشتې په ختمیدو سره هغه د اختر اعلان وکړی، د دوي روزه وی، بلکې د هیواد په داخل کې د روزی او اختر اعلان وسی، بیا هم خلک و سرکاری اعلان ته ګوری، د هغو علماء کرامو په اعلان عمل نه کوی. یو ځل دا دلیل وایې: سې اختلاف د مطالعو معتبر ده، او بل ځل وایې: سې سرکاری قاضي اعلان نه دي کړی، موږ روزه او اختر نسو جوړولي، نو کوشش کوم سې د دوي دغه زعم په قوی او مضبوطو دلائلو باطل کړم. او په کتاب کې یو څو شیان په فهم کې نیول سوي دی، اول داده: په کتاب الصوم کې او په مسئلة د رؤیت هلال کې ډیري مسئلي او خبرې دی، زه صرف هغه شیء ذکر کوم سې تر اختلاف مطالع پورې تعلق لری. دوهم: د کتاب په سر کې یو

ځو پوښتني او ځوابونه د تمهيد لپاره ذکر کوم، سې زموږ مقصودي مسئله ښه واضحه سی. دريم: کتاب په عربي او پښتو ژبه کې ګډ ليکم، سې نفع يې عامه سی. څلورم: کوشش کوم سې کتاب مختصر وليکم په دونه انداز سې صرف مقصود په اداء سی، ځکه په اوس وخت کې د خلکو بلکې دا کثرو علماء کرامو د علم شوق ډير کم ده، خپل د درس نظامی کتاب نه ګوری، نورې خارجي مطالعي خو ډير کم خلک کوی، اکثره علماء کرام په نورو کارونو مصروف وی، علم ته وخت نه ورکوی. لهذا علم خفه سوي ده او حقيقي علماء ورځ په ورځ کوچيږی. الله ﷻ مهربانه ده سې افغانستان به يو ځل بيا د علم مرکز جوړ کړی، ځکه امارت اسلامي قائم سوي ده، الله ﷻ دې دائم هم کړی.

ربنا زدنا علما، اللهم اجعلنا من المفسرين والمحدثين والعالمين الكاملين المتشرعين المهديين الى دين محمد مصطفى ﷺ برحمتك يا ارحم الراحمين

# خطبة الكتاب

الحمد لله الذى خلق السموات والارض فى ستة ايام وجعل فى السماء بروجا وجعل فيها سراجا وهاجا وقمرامنيرا وقدره منازل لنعلم عدد السنين والحساب مزبورا وجعل فى السنة اثنا عشر شهرا واربعة فصولا وجعل فيها ليالا وايام مشهورا والصلوة والسلام على سيدنا محمد الذى وعد ربنا معه مقاما محمودا وعلى آله واصحابه الذين هم لكافة المؤمنين مقبولا

اما بعد : فيقول العبد العاصى الراجى الى عفو ربه البارى فداء محمد بن محمد عارف المعصومى لما راينا اخواننا المسلمين خصوصا الباكستانيين من عدد سنين يعمدون افطار اليوم الاول من رمضان وصيام يوم العيد فى غالب السنين ويخالفون عن اهل بلاد المسلمين البعيدة والقريبة كالافاغنة والايرانيين مع علمهم بثبوت الشهر من اوطان الاسلامية بواسطة الوسائل الجديدة كالهاتف الكبير والتلويزيون والراديو وغيرهم زاعمين انه لاتلزمهم رؤية غيرهم من اهل البلاد الاسلامية ولو القريبة والمجاورة لهم معتمدين فى ذلك على اختلاف المطالع الذى قامت على اعتبار بطلانه بالنسبة الى الهلال البراهين الساطعة والادلة القاطعة مخالفين عما اوجبه الله تعالى عليهم بالكتاب وسنة سيد المرسلين واقوال الفقهاء المجتهدين فاردت ان احرر كتابا مختصرا لان شباب هذه الزمان لايطالعون كتابا مفصلا ومطولا بل لاينظرون ولا يلتفتون اليه والى الله المشتكى وابين فيه خطائهم فى ذلك الزعم واقيم الدليل على

وجوب اتحادهم مع المسلمين او مع من ثبت عندهم رؤية الهلال من قطر من الاقطار وسميته ببدائع الافكار لتوحيد المسلمين فى الصوم والافطار مع الاختصار وماكان قصدى من هذا ان يدرج ذكرى بين المحررين من المصنفين والمؤلفين والأبحار بل القصد اتحاد المسلمين فى الصوم والافطار فى الاقطار والعمل بالكتاب والسنة واقوال الاخيار مع رجاء الرحمة والمغفرة وعتق من النار ودعاءالاخوة والاخوات الصغار والكبار وما علي من اعراض الحاسدين عنه حال حياتى فسيتلقونه بالقبول انشاء الله تعالى بعد وفاتى

كما قيل: ترى الفتى ينكر فضل الفتى لؤما وخبثا

فاذا ما ذهب لج به الحرص على نكتة يكتبها عنه بماء الذهب. الهم اهدنا واهدبنا لانك تهدى من تشاء الى صراطك المستقيم آمين يا رب العلمين.

(ا)**پوښتنه** : قاضي په شريعت مطهره کې څه حکم لرى؟ او د قاضي په ټاکنه کې څه حکمت ده او سلطان قاضي ولى مقرر کوى. يعني (ماالحکم للقاضي فى الشريعة المطهرة، وما الحکم فى انتصابه، والسلطان لاى وجه ولّاه على الناس)؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب:** په شريعت مطهره کې د قاضي مقرر کول فرض ده، او د قاضي په ټاکنه کې حکمت په نړۍ کې امن راوستل او فساد ختمول دى. ځکه الله ﷻ و پرښتو ته وويل: سې زه په ځمکه کې خليفه پيدا کوم، د خليفه مقصد داده سې د الله ﷻ د احکامو اجراء به کوى، د الله ﷻ احکام په ځمکه کې جارې کول فرض دى، دغه جارى کول يې پر خليفه موقوف دى، نو د خليفه مقرر کول فرض ده. يعني سلطان پر ټوله نړۍ دغه احکام يوازې نسې جارې کولاي، بلکې معاوينېنوته ضرورت لرى، نو خليفه د خپل ځان لپاره نائبان مقرر کړى، سې هغه قاضيان دى. د دغه قاضيانو په وجه د الله ﷻ قانون جارى سې په نړۍ کې، د الله ﷻ قانون د امن ضامن ده، نو د قاضي په ټاکنه کې حکمت د نړۍ امن ده.

فنصب القاضي فرض لانه ينصب لإقامة امر مفروض وهو القضاء. قال الله تعالى: (ياداود انا جعلناک خليفة فى الارض فاحکم بين الناس بالحق) وقال تبارک وتعالى: لنبينا المکرم عليه افضل الصلوة والسلام (فاحکم بينهم بما انزل الله) والقضاء هوالحکم بين الناس بالحق والحکم بما انزل الله عز وجل فکان نصب القاضي لاقامة الفرض، فکان فرضا ضرورة، ولان نصب الامام

الاعظم فرض بلا خلاف بين اهل الحق، ولا عبرة بخلاف بعض القدرية لاجماع الصحابة (رضى الله عنهم) على ذلك، ولمساس الحاجة اليه لتنفيذ الاحكام وانصاف المظلوم من الظالم وقطع المنازعات التى هى مادة الفساد، وغير ذلك من المصالح التى لا تقوم الا بالإمام لما علم فى اصول الكلام، ومعلوم انه لايمكنه القيام بما نصب له بنفسه فيحتاج الى نائب يقوم مقامه فى ذلك، وهو القاضي. ولهذا: كان رسول الله ﷺ يبعث الى الافاق قضاة فبعث سيدنا معاذ (رضى الله عنه) الى اليمن، وبعث عتاب بن أسيد الى مكة، فكان نصب القاضي من ضرورات نصب الامام. فكان فرضا وقد سماه محمد ﷺ فريضة محكمة لانه لا يحتمل النسخ لكونه من الاحكام التى عرف وجوبها بالعقل، والحكم العقلى لايحتمل الانتساخ. والله تعالى اعلم. المبسوط السرخسى (ص٦٧،٨٠ـ ج١٦). بدائع الصنائع (ص٤٣٨ـ ج٥). معين الحكام (ص١٦).

واما حكمته فرفع التهارج ورد النوائب وقمع الظالم ونصرالمظلوم وقطع الخصومات والامر بالمعروف والنهى عن المنكر. معين الحكام (ص٧)

(٢) **پوښتنه:** قاضي په كوم شيء كې فيصله كوي، او كوم وخت دده و فيصلي ته ضرورة سته. يعني: القاضي فى اى شيء يحكم ومتى حاجة الى حكمه ؟

**ځواب:** په نړۍ كې يو معاملات دي او يو عبادات دي، يعني حقوق الله او حقوق العباد. قاضي اصلا فيصله په معاملاتو كې، يعني په حقوق العباد كې كوي، په هغه وخت كې سې يو انسان په بل انسان باندې د حق دعوه وكړي،

او هغه منکر وی نو دي ظالم او مظلوم د الله ﷻ په قانون معلوم کړی، بیا ومظلوم ته حق له ظالمه ور واخلی، او په حقوق الله کې، یعني په عبادا تو کې، بیا د سرزنش او تعزیر په وجه فیصله کوی. لکه پلار سې مثلا ځوي په لمانځه باندې امر کوی او که یه نه کاوه، بیا یه پسی وهی، که یه وس نه په رسیدو، بیا یه قاضي په کوی. ځکه قاضي د امیرالمؤمنین نائب وی امیرالمؤمنین پر ټولو مؤمنانو ولایت عامه لری. پلار او وارث ولایت خاصه لری، ولایت خاصه پر ولایت عامه مقدم ده، که ولایت خاصه نسوای کولای، او یا نه وو، بیا دې ولایت عامه کار ده. مثلا: یو سړی مړ سي، میراث یه د وارث ده، که یې پیسي نه درلودی، دفن او کفن یې پر وارث ده، که یه وارث نه وو، میراث یې د بیت المال ده، او کفن او دفن یې پر بیت المال ده. لهذا: اصلا قضا او فیصله په معاملاتو کې وی، یعني د خلکو په منځ کې وی، په عبادا تو کې یعني په لمانځه، روزه، حج، زکوة، شهادة، جهاد، او صدقاتو کې د قاضي وقضاء ته ضرورة نسته. داسې څوک نسی ویلي سې لمونځ نه کړم، او یا نه ده فرض، العیاذ بالله، ځکه قاضي فیصله نده کړی. او یا روزه نه نېسم، او یا نه ده فرض، العیاذ بالله ځکه قاضي فیصله نده کړی. د دغو عبادا تو فرضیت تر قاضي هیڅ تعلق نه لری. ځکه دغه احکام د الله ﷻ دی. او که یو چا نه کول، بیا به یې قاضي په کوی، ځکه قاضي ولاړ لپاره د إجراء د أحکامو ده، قال الله تبارک وتعالی: (یا داود انا جعلناک خلیفة فی الارض فاحکم بین الناس بالحق) وقال الله تبارک وتعالی: لنبینا المکرم علیه افضل الصلوة والسلام (فاحکم بینهم بما انزل الله). والقضاء هو الحکم بین الناس بالحق والحکم بما انزل الله عزوجل، بدائع، مبسوط، معین الحکام.

**(۳)پوښتنه:** ډیر خلک وايي بلکې بعض علماء کرام هم وايي، سې په رمضان کې پر موږ د خپل قاضي حکم واجب ده د خپل قاضي اتباع کوو، د بل قاضي په خوله باندې موږ روزه او اختر نسو جوړولي. لهذا د ټول پاکستان لپاره، مفتی منیب الرحمن صاحب مقرر ده، د بل ملا او قاضي په خوله باندې، هغه که په هیواد کې داخل وی، او که خارج وی، روزه او ختر جوړول ناجائز ده، ایا دا خبره صحیح ده او که نه؟

**ځواب:** دا خبره غلطه ده، ځکه دلته دري خبری دی، اول: د قاضي د قضاء حدود دی، دوهم: د روزی لپاره د قاضي د قضاء ضرورة سته او که نه. دریم، قاضي وچا ته وايي ایا دغه مذکور کس قاضي ده او که نه.

**دري (۳) سره په غور واوره.**

**اوله خبره:** د قاضي د قضاء حدود ثابت دی، هغه په دي معنی سې الله ﷻ د خپلو احکامو د اجراء لپاره د خلافت سلسله د ځمکې پر مخ شروع کړه، نو ټوله ځمکه د هغه چا حق سوه، کوم څوک سې د الله ﷻ احکام تسلیموی، سې هغه مسلمانان دی، هغه ځمکه سې کفارو نیولی ده، هغو د مسلمانانو حق غصب کړی ده، نو ځکه موږ وايو سې په اسلام کې سر حد نسته، بیا خاص په احکامو کې، لکه لمونځ، او روزه وغیرهما.نو ځمکه سې ټوله د مسلمان سوه، د مسلمانانو خلیفه مکلف ده سې پر څومره ځمکه تسلط لری، پر هغي باندې به د الله ﷻ

احکام جاري کوی. او د هغي نوري ځمکې به کوشش کوی، سې تر خپل تسلط يې لاندې کړی، او په ټوله ځمکه باندې يوازې احکام نسې جارې کولي، نو معاونينوته ضرورت پيداسی، نو يو حکومت منظّم کړی، په دغه حکومت کې د ځان لپاره نائبان مقرر کړی، هغه نائبان قاضيان دی، و هر قاضي ته خپله علاقه ورمعلومه کړی، او بعض وخت، وخت هم ورمعلوم کړی، نو د قاضي ولايت او تصرف تر هغه کلي او وخت پورې تړلي وی، تر هغه زيات تصرف نسي کولي. ځکه خو هغه اصل حاکم، سې سلطان او خليفه ده، اجازه نده ورکړی. مثلا اميرالمؤمنين د کندهار لپاره قاضي مقرر کړي ده، د غه قاضي په زابل کې د قضاء حق نه لری، قاضي جبرا کولي سی، سې د خلکو په منځ کې په حق باندې فيصله وکړی، او پر خلکو يې اتباع واجب ده. لهذا د کندهار قاضي د کندهاريانو فيصله جبرا کولاي سی، او پر کندهاريانو يې اتباع واجب ده، او پر زابليانو يې جبرا نسې کولای، ځکه خو اميرالمؤمنين د غه قاضي و زابل ته نده مقرر کړی، او نه يې پر زابليانو اتباع واجب ده. او که بالفرض دوه زابليان مدعيان په خپله خوښه د کندهار قاضي ته ورسی، او ورته ووايې: سې زموږ فيصله را وکړه، او هغه فيصله ور وکړه، له فيصلي وروسته پر دوي د دغي فيصلي منل واجب دی. يعني له خپلو حدودو د باندې فيصله کولاي سی، په دی شرط سې هغه خلک په خپله دده په فيصله راضي وی، جبرا يې نسې په کولای، لکه د کلي او د قوم عالم، خان، او ملک.

**دوهمه خبره:** په روزه کې د قاضي و قضاء ته هيڅ ضرورة نسته، ځکه مختته

ذکر سوو، سې قضاء په معاملاتو کې وی، یعني په حقوق العباد کې وی، مختته دعوه غواړی او متخاصمین غواړی، او روزه عبادت ده، لکه لمونځ، حج، او زکوة. لهذا: په ائنده کې به ان شاء الله ذکر سی سې د قاضي قضاء د روزي لپاره نه شرط ده، او نه سبب ده، روزه پر لیدلو او یا پر حساب باندې موقوفه ده، کوم څوک سې میاشت ووینی هغه و قاضي ته ورځی، د دی لپاره سې دغه لیدل یقیني سی، د قاضي له خولي سې خلک خبر سی، نو خلک عمل په کوی، ځکه یو خو خلک په هغه لیدلو مطمئن سی، او بل پر خلکو واجب سی، د ده د امر له وجی، ځکه دي د سلطان نائب ده، د سلطان یعني د امیر اطاعت واجب ده، حتی په مباحاتو کې لاهم واجب ده، مګر د قاضي په حکم پر هغه چا واجب کېږی، پر کومو خلکو سې دي قاضي ده، او که قاضي یا امیر د شریعت پر خلاف یا د مذهب پر خلاف خلک امر کړی، بیا یه پر خلکو اطاعت نه ده واجب، خلاصه یه دا سوه سې خلک د قاضي بې اعلانه روزه نیولی سی، او جائز ده. او که یه پر میاشتې علم راغلي وی، بیا یه پر خلکو نیول فرض ده، کڅه هم قاضي اعلان نه وې کړی، او که خلکو پر میاشتې علم راغلي وی او قاضي د نه نیولو اعلان وکړی، هم پر خلکو یه نیول فرض ده، ځکه د قاضي اعلان د شریعت مخالف ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دې (لا طاعة للمخلوق فی معصیة الخالق) په یو صورة کې د قاضي اعلان ته اعتبار سته، هغه داده: سې د خلکو پر میاشتی علم نه وی، او قاضي اعلان وکړی سې روزه ونیسئ، دلته پر خلکو واجب ده سې د ده اتباع وکړی.

**دریمه خبره داده:** سې قاضي چا ته وایې او دغه مذکور کس قاضي ده او

کنه، مخته ذکر سو، سې قاضي و هغه چاته وايې سې د خليفه نائب وی، په اجراء د احکامو کې، او مذکور کس قاضي نه بلل کيږی. ځکه بادشاه پخپله احکام الهی نه جاری کوی، په دې هيواد کې نه حدود او نه قصاص سته، او نه اسلامي حکومت او نه نظام سته، نو بادشاه په خپله خليفه نه ده، نو نائب به يه څنګه قاضي سی، بلکې د دوي نائبان ججان دی، هغه په قرآن فيصله نه کوی، او خليفه ته د الله ﷻ حکم ده، سې (فاحکم بينهم بما انزل الله). او دوهم: مذکور کس يه په دغه فاسد نظام کې هم د ځان نائب نه ده جوړ کړی، صرف يه د رؤية هلال د کميټې چيرمين کړی ده، يعني صرف يه د دغه اعلان لپاره مقرر کړی ده، اعلان کولاي سی. ځکه که په يو ځاي کې حاکم او قاضي نه وی، و هر عالم ته خلک د مياشتې د ليدلو په وجه ورتلاي سی، ځکه قاضي ورته شرط نه ده،

**د ځواب خلاصه دا سوه:** سې د دغو خلکو خبره غلطه ده، ځکه نه د روزی په اعلان کې د قاضي د اعلان حدود سته، او نه د قاضي و قضاء ته په روزه کې ضرورة سته، او نه دغه مذکور کس قاضي ده.

واما المقلد فلا ينفذ قضاؤه بخلاف مذهبه اصلا آه، (قوله فکيف بخلاف مذهبه) ومبنى ذلک على ماقالو ا ان تولية القضاء تتخصص بالزمان والمکان والشخص ولو ولّاه السلطان القضاء فى زمان مخصوص او مکان مخصوص او على جماعة مخصوصة تعين ذلک لانه نائب عنه. ( قوله نفذ امره ) ان کان المراد بالامر الطلب بلا قضاء فظاهر وعليه فالمراد بالنفاذ وجوب الامتثال وهذا الذى رايته

فی سیر التاتارخانیة فی الفصل العاشر فیما یجب فیه طاعة الامیر ومالایجب ونصه. قال محمد: واذا امر امیر العسکر بشيء کان علی العسکر ان یطیعو ہ فی ذلک، الا ان یکون المامور به معصیة بیقین قد أفتیت ان تولیة باشا مصر قاضیا لیحکم فی قضیة بمصر مع وجود قاضیها المولی من السلطان باطلة لانه لم یفوض الیه ذلک آه، فتامل. (رد المحتار (ص۵۲،۵۷۔ج۱).

(۴) **پوښتنه:** که خلک د قاضي او یا د عالم په اعلان خبر سی، د کوم قاضي او عالم په اعلان عمل واجب ده، او په څونه حد کې معتبر ده. ډیر خلک بلکې اکثر علماء کرام وایې سې اختلاف د مطالعو معتبر ده، او بعض وایې سې د خپل هیواد د قاضي اعلان معتبر ده، د بل هیواد د قاضي اعلان نده معتبر. ایا د دغو خلکو خبري صحیح دی، او که نه. ؟

**ځواب:** د دغو خلکو دواړی خبري بي ځایه او غلطی دی. د دي خبرې ځواب سې د خپل هیواد د قاضي اعلان غواړی، مخته سې د درېیمې پوښتنې ځواب ذکر سو هغه ورته کافی ده، او هم به په أئنده کې د اولې خبرې د ځواب په ضمن کې ان شاء الله د دي خبرې ځواب هم وسی. او اوله خبره سې خلک وایې: اختلاف د مطالعو معتبر ده مطلقا، او یا وایې په بعد "لري والې" کې معتبر ده او په قرب "نزدیوالې" کې نه ده معتبر، دا په ډیرو دلائلو باندې باطله ده او زموږ د کتاب مقصد او هدف هم دغه مسئله ده.

**اول دليل :** موږ مقلدين او مذهبيان خلک يو د مقلد لپاره د خپل امام مجتهد قول حجت ده، لهذا وموږ حنفيانو ته د خپلې فقه حنفي عبارات او تصريحات کافي او شافي دي، د نورو دلائلو ذکر کولو ته، او د ماخذ تلاش کولو ته، هيڅ ضرورة نسته. د هغه با وجود د بعضي خلکو د اطمنان لپاره د خپلې فقه له تصريحاتو ماسوی يو څه دلائل نور هم ذکر کوم، زموږ د قول مذهب خلاصه داده سې د برات "شعبان" مياشت خلک و ويني، بس دغه مياشت به حسابې، تر نويشتم (۲۹) پوری، کوم وخت سې نويشت ورځې او شپې پوره سی، د ديرسم (۳۰) په شپه تر لمر لويدو مخته به د مياشتې د ليدلو کوشش شروع کړی، که يه مياشت وليده تر لمر لويدو مخته، يا وروسته، دغه خلک به سهار روزه نيسي، له شکه وتلی. او که يه مياشت نه وليده او پر اسمان هم هيڅ علت نه وو، نه وريځ، او نه ګرد وو، دغه خلک به سهار له شکه وتلی، روزه نه نيسی. او که يه مياشت نه وليده مګر پر اسمان علت يعنې ګرد، يا وريځ موجوده وه، نو د سهار ورځ د خلکو لپاره مشکوکه سوه، دا احتمال لری سې د رمضان مياشت دې وی، او برات "شعبان" دې د نه ويشت (۲۹) وی، او دا احتمال هم لري سې د براة ديرشمه ورځ دې وی، د شک د روزی خپل احکام دی، هغه پر يږده ، که دغو خلکو نه ليدله، او بل ځاي کې خلکو وليده تر دغو خلکو دغه خبر په داسی انداز را ورسيد، سې د دغو خلکو غالب ګمان سو ، سې مياشت يه ليدلي ده، هغه ليدونکې که هر څونه لري وی، پروا نه لری. او دغه رنګه دغه خبره که په هره طريقه راورسيږی، پروا نه لری، ځکه إخبار ده شهادت نه ده. نفس اوازه اعتبار

نه لري، او دغه طريقه وحساب د هرې مياشتې لپاره دغه شان ده. مثلاً كه زموږ د شعبان مياشت و وينو، او حساب را شروع كړو د مياشتې په اخير كې خبر سو، سې فلان هيواد يوه ورځ تر زموږ مخته مياشت ليدلې ده، په معتبره طريقه دغه خبر زموږ ته را ورسيږي، بس زموږ به هم د هغو له حسابه حساب ورته كوو، او يا موږ د روزې حساب شروع كړي وو، سې نه ويشت (۲۹) پوره سوي، د اختر مياشت مو وليده. او له بله ځايه خبر سوو سې د هغو نن دير شمه روزه وه، پر زموږ ديوې روزې قضاء لازمه ده. او كه د شعبان د دير سم (۳۰) په شپه نه موږ مياشت وليدله، نه له بله ځايه خبر سوو، او نه پر اسمان كوم علت و، نو به شعبان دير س (۳۰) پوره كړو، په يو دير سم (۳۱) د شعبان به او له روزه و نيسو، كه مو څه هم مياشت نه وې ليدلې، او نه په دغه شپه د مياشتې د ليدو ضرورة سته، ځكه په شريعت كې د يو دير س (۳۱) مياشت نسته. دا زموږ په مذهب كې ظاهر الرواية، راجح، او مفتى به قول ده سې اختلاف د مطالعو مطلقاً اعتبار نه لري، او په قول مرجوح باندې عمل كول ناجائز ده.

وفى الخانية لاعبرة لاختلاف المطالع فى ظاهر الرواية. وفى الفتاوى الخلاصة وعليه فتوى ابى الليث، وبه كان يفتى الشيخ شمس الائمة الحلوانى، وكان يقول لو رأى اهل المغرب هلال رمضان يجب الصوم على اهل المشرق، وفى الظهرية عن ابن عباس انه يعتبر فى حق كل بلدة رؤية اهلها. وفي القدوري اذا كان بين البلدتين تفاوت لايختلف المطالع لزم حكم اهل احد البلدتين البلد الاخرى فاما اذا كان تفاوت يختلف المطالع لم يلزم حكم احدالبلدتين البلد الاخرى، وذكر الشيخ شمس الائمة الحلوانى ان الصحيح من مذهب اصحابنا ان الخبر اذا

استفاض وتحقق فيما بين اهل إحدى البلدتين يلزمهم حكم اهل هذه البلدة.
(الفتاوى التاتارخانية(ص٤٦٥،٤٦٦ـ ج٣).

نعم لو استفاض الخبر فى البلدة الاخرى لزمهم على الصحيح من المذهب مجتبى وغير (قوله نعم آه) فى الذخيرة قال شمس الائمة الحلوانى فى الصحيح من مذهب اصحابنا ان الخبر اذا استفاض وتحقق فيما بين اهل البلدة الاخرى يلزمهم حكم هذه البلدة آه. ومثله فى الشرنبلالية عن المغنى قلت: ووجه الاستدراك ان هذه الاستفاضة ليس فيها شهادة على قضاء قاض ولا على شهادة، لكن لما كانت بمنزلة الخبر المتواتر وقد ثبت بها ان اهل تلك البلدة صاموا يوم كذا لزم العمل بها لان البلدة لاتخلوا عن حاكم شرعي عادة فلا بد من ان يكون صومهم مبنيا على حكم حاكمهم الشرعي فكانت تلك الاستفاضة بمعنى نقل الحكم المذكور. وهى اقوى من الشهادة بان اهل تلك البلدة رأو الهلال وصاموا لانها لا تفيد اليقين فلذا لم تقبل الا اذا كانت على الحكم او على شهادة غيرهم لتكون شهادة معتبرة. والا فهى مجرد اخبار بخلاف الاستفاضة فانها تفيد اليقين فلا ينافى ماقبله هذا ما ظهر لي تأمل.

تنبيه: قال الرحمتي معني الاستفاضة ان تاتي من تلك البلدة جماعات متعددون كل منهم يخبر عن اهل تلك البلدة انهم صاموا عن رؤية لامجرد الشيوع من غير علم بمن اشاعه كما قدر تشيع اخبار يتحدث بها سائر اهل البلدة ولاعلم من اشاعها كما ورد أن فى آخر الزمان يجلس الشيطان بين الجماعة فيتكلم بالكلمة فيتحدثون بها ويقولون لاندرى من قالها فمثل هذا لاينبغى ان يسمع

فضلا عن ان يثبت به حكم، آه. قلت: وهو كلام حسن ويشير اليه قول الذخيرة اذا استفاض وتحقق، فأن التحقق لايوجد بمجرد الشيوع، در المختار، مع رد المحتار (ص١٩٢ـ ج٢).

قال فى البحر عن الخلاصة بعد ماذكره الشارح هنا لان اثبات مجئ رمضان لايدخل تحت الحكم حتى لو اخبر رجل عدل القاضي بمجئ رمضان يقبل ويامر الناس بالصوم فى يوم الغيم ولايشترط لفظ الشهادة، وشرائط القضاء أما في البعيد فيشترط لفظ الشهادة وهو يدخل تحت الحكم لانه من حقوق العباد، آه. قلت: والحاصل ان رمضان يجب صومه بلاثبوت بل بمجرد الاخبار لانه من الديانات ولايلزم من وجوب صومه ثبوته كما مر، رد المحتار على در المختار (ص١٩٢ـ ج٢).

واختلاف المطالع ورؤيته نهارا قبل الزوال وبعده غير معتبر على ظاهر المذهب وعليه اكثر المشائخ وعليه الفتوى، بحر عن الخلاصة فيلزم اهل المشرق برؤية اهل المغرب اذا ثبت عندهم رؤية اولئك بريق موجب كما مر آه، (قوله على ظاهر المذهب) اعلم ان نفس اختلاف المطالع لانزاع فيه بمعنى ان قد يكون بين البلدتين بعد بحيث يطلع الهلال ليلة كذا فى احدى البلدتين دون الاخرى وكذا مطالع الشمسلان انفصال الهلال عن شعاع الشمس مختلف باختلاف الاقطار حتى اذا زالت الشمس فى المشرق لايلزم ان تزول فى المغرب، وكذا طلوع الفجر وغروب الشمس بل كلما تتحركت الشمس درجة فتلك طلوع فجر لقوم، وغروب لبعض، ونصف ليل لغيرهم، كما فى الزيلعى، وقدر البعد

الذى يختلف فيه المطالع مسيرة شهر فاكثر على ما فى القهستاني عن الجواهر اعتبارا بقصة سليمان عليه السلام فانه قد انتقل كل غدو، و رواح، من اقليم الى اقليم وبينهما شهر، آه. ولا يخفى ما في هذا الاستدلال وفي شرح المنهاج للرملى وقد نبه التاج التبريزى على ان اختلاف المطالع لايمكن فى اقل من اربعة وعشرين فرسخا وافتى به الوالد، والاوجه انها تحديدية كما افتى به ايضا آه. فليحفظ وانما الخلاف فى اعتبار اختلاف المطالع بمعنى انه هل يجب على كل قوم اعتبار مطلعهم ولايلزم احدا العمل بمطلع غيره، ام لايعتبر اختلافها بل يجب العمل بالاسبق رؤية حتى لو رؤى في المشرق ليلة الجمعة وفي المغرب ليلة السبت وجب على اهل المغرب العمل بما رآه اهل المشرق، فقيل بالاول واعتمده الزيلعى وصاحب الفيض وهو الصحيح عند الشافعية لان كل قام مخاطبون بما عندهم كما في اوقات الصلوة وايده، فى الدرر بما مر من عدم وجوب العشاء والوتر فاقد وقتهما، والظاهر الرواية الثانى وهو المعتمد عندنا، وعند المالكية والحنابلة لتعلق الخطاب عاما بمطلق الرؤية فى حديث صوموا لرؤيته، بخلاف اوقات الصلوة وتمام تقريره فى رسالتنا المذكورة، ردالمحتار على در المحتار (ص١٠٥ـ ج٢).

مطلب فى رؤية الهلال وقد تلخص مما حررناه وتحصل مما قررناه من المسائل المتفرقة والمجتمعة فى هذه الفصول الاربعة ان المعول عليه والواجب الرجوع اليه فى مذاهب الائمة الاربعة المجتهدين كما هوالمحرر فى كتب اتباعهم المعتمدين ان اثبات هلال رمضان لايكون الا بالرؤية ليلا او باكمال عدة شعبان وانه لاتعتبر رؤيته فى النهار حتى ولو قبل الزوال على المختار وانه لايعتمد على ما يخبر به اهل الميقات والحساب والتنجيم بمخالفته شريعة

نبینا علیه افضل الصلوة والتسلیم وانه لاعبرة باختلاف المطالع فی الاقطار الا عند الشافعی ذی العلم الزخار مجموعة رسائل ابن عابدین (ص۲۵۳۔ج۱).

واذا ثبت فی مصر لزم سائر الناس فیلزم اهل المشرق برؤیة اهل المغرب فی ظاهر المذهب وقیل یختلف باختلاف المطالع لان السبب الشهر وانعقاده فی حق قوم للرؤیة لایستلزم انعقاده فی حق آخرین مع اختلاف المطالع وصار کالوزالت او غربت الشمس علی قوم دون آخرین وجب علی الاولیین الظهر والمغرب دون اولئک وجه الاول عموم الخطاب فی (قوله ﷺ صوموا) معلقا بمطلق الرؤیة فی (قوله ﷺ لرؤیته) وبرؤیة قوم یصدق اسم الرؤیة فیثبت ما تعلق به من عموم الحکم فیعم الوجوب بخلاف الزوال والغروب فانه لم یثبت تعلق عموم الوجوب بمطلق مسماه فی خطاب من الشارع، والله اعلم ثم انما یلزم متاخری الرؤیة اذا ثبت عندهم رؤیة اولئک بطریق موجب آه. فتح القدیر (ص۲۴۳۔ج۲).

اهل بلدة اذاراوی الهلال یلزم ذلک فی حق اهل بلدة اخری؟ اختلف المشائخ فیه بعضهم قالوا لایلزم ذلک به وانما المعتبر فی حق کل بلدة رؤیتهم وبنحوه ورد الآثر عن ابن عباس ؓ وفی المنتقی بشر عن ابي یوسف وابراهیم عن محمد اذا صام اهل بلدة ثلاثین یوما للرؤیة وصام اهل بلدة تسعة وعشرون یوما للرؤیة فعلیهم قضاء یوم، وفي القدوری اذا کان بین البلدتین تفاوت لا تختلف المطالع لزم حکم احدی البلدتین حکم بلدة الاخری فاما اذا کان تفاوت تختلف المطالع فیه لم یلزم احد البلدتین حکم البلدة الاخری وذکر شمس الائمة الحلواني ان الصحیح من مذهب اصحابنا رحمهم الله ان

الخبر اذا ستفاض وتحقق فيما اهل البلدة الاخرى يلزمهم حكم اهل هذه البلدة. المحيط البرهانى(ص٣٤١ـ٣) كتاب الصوم).

(ولا عبرة باختلاف المطالع فاذا راه اهل بلدة ولم يره اهل بلدة اخرى وجب عليهم ان يصوموا برؤية اولئک اذا ثبت عندهم بطريق موجب ويلزم اهل المشرق برؤية اهل المغرب وقيل يعتبر فلايلزمهم برؤية غيرهم اذا اختلف المطلع وهو الاشبه، كذا فى التبيين. والاول: ظاهر الرواية وهو الاحوط، كذا فى فتح القدير وظاهر المذهب وعليه الفتوى، كذا فى الخلاصة. اطلقه فشمل ما اذا كان بينهما تفاوت بحيث يطلع المطلع اولا آه، البحرالرائق(ص٤٧١ـج٢) ولا عبرة لاختلاف المطالع فى ظاهر الرواية كذا فى فتاوى قاضي خان وعليه الفتوى الفقيه ابى الليث وبه كان يفتى شمس الائمة الحلواني قال لو رأى اهل مغرب هلال رمضان يجب الصوم على اهل مشرق، كذا فى الخلاصة ثم انما يلزم الصوم على متاخرى الرؤية اذا ثبت عندهم رؤية اولئک بطريق موجب الفتاوى الهندية (ص١٩٨ـج).

ولوصام اهل بلدة ثلاثين يوما للرؤية واهل بلدة اخرى تسعة وعشرين يوما للرؤية فعلم من صام تسعا وعشرين فعليهم قضاء يوم ولاعبرة لاختلاف المطالع فى ظاهر المذهب،

الفتاوى الانقروية(ص١٥) وهكذا فى حلبى كبيرى (وطحطاوى على الدر المختار(ص٤٤٨ـج١).

اذا ثبت رؤية الهلال بقطر من الاقطار وجب الصوم على سائر الاقطار لافرق بين القريب من جهة الثبوت والبعيد اذا بلغهم من طريق موجب للصوم ولاعبرة

باختلاف مطلع الهلال مطلقا عند ثلاثة من الائمة، وخالف الشافعية، كتاب الفقه على المذاهب الاربعة (ص٥٠٠).

(واذا فى موضع لزم جميع الناس). (قوله واذا ثبت فى موضع آه) ولا اعتبار باختلاف المطالع حتى قالوا لو راى اهل المغرب هلال رمضان يجب برؤيتهم على اهل المشرق اذا ثبت عندهم بطريق موجب، لكن يفهم من عبارة المصنف عدم الاعتبار مطلقا وهو المذهب، وظاهر الرواية، وعليه الفتوى، كما فى اكثر **المعتبرات**، مجمع الانهر على ملتقى الابحر (ص٣٥٢-١)، وهكذا فى اعلان السنن (ص١١٨-ج٩). وغيرهم.

د احنافو کتابونه ټول په دي متفق دی، سې اختلاف مطالع ته اعتبار نسته، د اهل مغرب په ليدلو به اهل مشرق روزه او اختر جوړوی، په دي شرط سې له اهل مغرب څخه دا خبر په موثق او معتبره طريقه راورسيږی، ماسيوا له يوڅو کتابونو، لکه تبيين الحقائق وغيره سې اختلاف مطالع يه معتبر بللی ده هغه هم په حقيقة کې هيڅ ټکر نه لری، د هغو د قول محمل صحيح به هم انشاء الله په أئنده کې ذکر کړم.

**دوهم دليل:** له قرآن کريم څخه په دی باندې، سې اختلاف د مطالعو اعتبار نه لری، يعني که په سعودی کې مثلا مياشت وليدله سی، او په معتبره طريقه افغانستان او پاکستان ته خبر راورسيږی، نو پر دغو هيوادونو لازمه ده سې له هغو سره روزه او اختر جوړ کړی، دلته يوڅو تمهيدي خبري ليکم: الله ﷻ دانسانو د نفع لپاره د اسبابو نړی پيدا کړه په شپږو ورځو کې ځمکه،

اسمان، لمر، سپوږمۍ، وغیرهم یه پیدا کړل، د لمر او سپوږمۍ لپاره یه په اسمانونو کې منزلونه او برجونه پیدا کړل، دلمر، او دسپوږمۍ د حرکت په وجه یه دوولس (۱۲) میاشتې، شپې، او ورځې پیدا کړی، د علم فلکیاتو په اساس لمر ټول وخت پر یوه حال وی، ځکه روڼا یه خپله وی، او سپوږمۍ کله غټه، کله وړه، کله بلکل ورکه سی، ځکه روڼا یه د لمر په وجه وی. سپوږمۍ سې له کومه ځایه روانه سی، او بیرته سې هغه ځای ته راسی، دیته منزل وایې. په شب و روز کې دا یو منزل پوره کوی، دوولس (۱۲) برجونه دی، اته ویشت (۲۸) یه تقریبا منزله دی. لمر په څلورم اسمان کې ده، او سپوږمۍ په اول اسمان کې ده، د لمر حرکت تیز دہ پر سپوږمۍ باندې، د سپوږمۍ د پیدا کولو طریقه اهل فلکیات داسې بیانوی، وایې: سپوږمۍ هر وخت په اسمان کې موجوده وی، لکه لمر سې کوم وخت د سپوږمۍ پر سر بلکل برابر سی نسبت و ځمکې ته، یعني سپوږمۍ د لمر، او د ځمکې په منځ کې سي، په دي وخت کې سپوږمۍ ورکه سی، او روڼا یه نه معلومیږي، ځکه ځمکې ته یه شا سی. سپوږمۍ د آیني "شیشه" په څیر دہ، دواړه د مغرب طرف ته روان وی، (۱۵). (۱۷). یا، (۲۷) ساعته علی اختلاف الاقوال، سې رفتار سره وکړی، لمر دونه ځنې مخته سی، سې سپوږمۍ امکان د لیدو پیدا کړی، ځکه محاذات یه ختم سی، او تر له تیر سی. هغه د لمر خوا ته پر څوکه یه روڼا ولګیږی، نرې ښکاره سی، بله ورځ لمر دغونه نور ځیني تیر سی، د دي پنډوالي یوڅه نور زیات سی، دغه رنګه پنډواله یه ورځ په ورځ زیاتیږي، د میاشتې تر نیمایې پوری. د میاشتې په نیمایې کې بلکل روڼا پوره سی، ځکه ځمکه د لمر او د سپوږمۍ په منځ کې سی، دوي په خپل منځ کې سره مخامخ سی،

کوم وخت سې لمر د ګُري ترمنځ پسي ورتير سی، سپوږمی بيرته پر کموالي شروع وکړی، هغه څوکه سې پخوا روڼا سوي وه، هغه بيرته توره سی، د دي ګول والي کنډو سی، په اته ويشت (۲۸)ورځی، يا منزله کې لمر بيرته پسي راورسيږی، او د دې پر برابر سی، دا بلکل د ده "لمر" او د ځمکې ترمنځ سی، دغه رنګه بيا په (۱۵) يا (۲۰) ساعته کې د لمر له شعاعو ووځی، دي د مغرب طرف ته مخته سی، او دا شا ته پاته سی، داسلسله به جارې وی تر قيامته پوری. په دي کې د الله ﷻ حکمت دا ده سې خلکو ته د عبادا تو، معاملاتو، اوقات، او حساب ورښه يي، تر دغه لمر او سپوږمی الله ﷻ احکام معلق کړي دی.

## د الله جل جلاله احکام دوه ۲ قسمه دی، (۱) تکليفی (۲) وضعی.

**(۱)اول حکم:** حکم تکليفی هغه ته وايې سې الله تعالی په قران مجيد او يا حديث کې ذکر کړي وی، مثلا: لکه لمونځ، او روزه،

**(۲) دوهم حکم:** حکم وضعی هغه ته وايې سې الله تعالی په حکم تکليفی پسي معلق کړي وی، لکه: وخت، د لمانځه او د روزی لپاره، الله تعالی سې حکم تکليفی په هر شيء پورې معلق کړي، د دغه حکم تکليفې، او د هغه شي په منځ کې که يو مناسبت عقلې وی، هغه شيء ته علت وايي، او که مناسبت عقلې نه وی، هغه ته بيا سبب وايي. دغه لمر او سپوږمی اسباب دی، لپاره د احکامو تکليفيه وو، ځکه په دوي وختونه معلوميږي.

او دغه وختونه بیا دوه ۲ قسمه دی، (۱) عام (۲) خاص

(۱)**اول وخت**: هغه عام وقت ده لکه د جمعی ورځ، د اختر ورځ، اودعرفات ورځ (۲)**دوهم وخت**: هغه خاص وخت ده، لکه په ورځ کې داخل وختونه، مثلا سهار، ماشپین، مازدیګر ،ماښام، ماخستن. د جمعی د ورځې لپاره لمر سبب ده، او دغه جمعه د ټولی نړی سره مشترکه ده، د پاکستان، افغانستان، او سعودی عرب په یوه ورځ جمعه وی، مګر د پاکستان او افغانستان د جمعي وخت له مخه داخلیږي، ځکه فجر صادق سې په ورځ کې یو خاص وخت ده، هغه وختې را خیږی، او د سعودیه جمعه نا وخته بیا ختمیږي، نوره ورځ، یه یوه ورځ وی، او د لمونځو وختونه یه ټول سره بدل دی، ځکه هغه خاص وختونه دي. په بل تعبیر د دغو خاصو وختو سبب لمر ده، د لمر په حساب کې اختلاف د مطالعو معتبر ده، او د شهر رمضان لپاره شهود د هلال رمضان سبب دی، او یوم رمضان لپاره وجود د یوم سبب ده، وجود د یوم په لمر سره وی، په لمر کې اختلاف معتبر ده، نو زموږ او د سعودي د یوم رمضان په شروع او انتهاء کې فرق ضروری وی، لکه د جمعی په شروع کېدو او ختمیدو کې، لیکن ورځ به سره یوه وی، لکه د جمعی ورځ. او د مجموع شهر رمضان لپاره سبب شهود د شهررمضان ده، او د شهود ثبوت په رؤیت سره کېږی، رؤیت سې په هر ځاي کې وسو، دا ثابته سوه سې میاشت موجوده ده. او د میاشت موجودیت سبب د رمضان ده، او دغه رنګه د شهود ثبوت د شعبان په شمار سره ده، په هر ځاي کې سې د شعبان له دیده د

شعبان دیرس(۳۰) ورځې پوره سوی، بس شهر رمضان ثابته سوه. او دغه ثبوت د ټولو هیوادونو لپاره کافی ده، ځکه میاشت د ټولو سره ګډه ده، سې یو ځای ثابته سی ګوا کي هر ځاي ثابته سوه، ځکه د میاشتې شروع له هغه ځایه کیږی، سې میاشت له لمره سره جفته، یعني بلکل محاذی سی، او بیا ځیني جلا سی، لمر د مغرب طرفته تیر سی، او دا د مشرق طرفته ځیني پاته سی، او قابل دید سی، دا د میاشتي اوله ورځ ده، داسی خومحاله ده سې په افغانستان، یا پاکستان کې نن ځیني جدا سی، او په بل هیواد کې بیا بله ورځ ځیني جدا کیږی. ځکه یو ځل سې ځیني جدا سی، بس په هر ځاي کې ځیني جدا ده،او دا دلیل په دي قول د الله ﷻ باندې ثابت ده، (فمن شهد منکم الشهر فلیصمه، البقرة۱۸۵)

**شهد په څلورو ۴ معنی ګانو سره راځی:**

(۱)**اوله**: معنی یه خبر ده، کشهد عند الحاکم وشهد اعرابي عند رسول الله صلی الله علیه وسلم بانه اهل الهلال بالامس، یعني و رسول الله ته یې خبر ورکړ، سې ده پرون میاشت لیدلی ده.

(۲)**دوهمه**: معنی یه اطلاع او معاینه ده، مثلا یو څوک ووایې شهدت زیدا یصلی فی المسجد، یعني ما زید په سترګو ولید او اطلاع مې وربانديې راغله سې په مسجد کې یه لمونځ کوي.

(۳)**دریمه**: معنی یه حاضریدل او موجودیدل دی، مثلا که یو څوک ووایي

وشهدنا جنازة فلان وعلي رضي الله عنه شهد بدرا ، مونږ د فلانی جنازی ته حاضر سوو ، علي کرم الله وجهه په بدر کې موجود وو.

(۴) ځلورمه: معنی یه علم ده، لکه په دي قول د الله جل جلاله کې (شهدالله انه لا اله الا هو ، آل عمران۱۸) او په دي قول د رسول الله صلی الله علیه وسلم کې (من شهد انه لا اله الا الله دخل الجنة) په دي ځلورو معنی ګانو کې اوله معنی، سې خبر ده، هیڅ تعلق له ایات شریف سره نلری، او دویمه معنی، سې معاینه ده هم په اجماع سره باطله ده، ځکه د ایات شریف مقصد دا کیږی، سې هر چا که نه وه لیدلی، پر هغه روزه نیول نسته، او هر چا که په سترګو ولیده پر هغه واجب ده او دا دواړې خبرې باطلې دی، ډیر خلک داسې دی، چې میاشت یه نه وې لیدلې مګر روزه پر لازمه وی، ځکه ټول خلک خو یه نسي لیدلي او ډیر بیا داسې دی، سې لیدلي یه وې مګر پر واجب نه وی، مثلا لکه کوچنیان، او مریضان دریمه: معنی یه حضور ده، ډیرو مفسرینو او فقهاء کرامو په دي ایات شریف کې اخیستې ده وایې ترجمه یه داسې ده (فمن حضر منکم الشهر) ای (دخل علیه الشهر وهو حاضر مقیم) په دي معنی کښه هم مطلوب حاصلیږي، ځکه د حضور ثبوت عام ده ، یعني دغه حضور د سړی په خپل رؤیت ثابت وی او که د بل په رؤیت ثابت وی په قریب یه ثابت وی او که په بعید یې ثابت وی، پر خاص حضور باندې حمل کول یه مخصص غواړی، دلته نه مخصص سته او نه داعي سته، نو ځکه ایات کې حضور پر خپل عموم پاته کیږی، مګر د دغه باوجود فخرالدین امام رازی رح دغه معنی رد کړی ده، وایې د دغه ایات په مقابل کې خو دغه ایت مبارک

ده (ومن کان مریضاً او علی سفر) نو مریض هم حاضر ده، و میاشتې ته، د هغه باوجود پر لازمه نه ده.هلکان، لیونیان، او مسافر حاضر دی، مګر پر لازمه نه ده، کوم وخت سې دري معناګاني باطلي، او یا ضعیفه سوي، نو څلورمه معنی متعینه سوه سې هغه علم ده، نو د ایات شریف ترجمه داسې کیږی، (فمن شهد منکم الشهر فلیصمه) اي علم منکم بوجوده ودخوله، یعني که د یوچا له تاسو څخه علم پر وجود او دخول د شهر رمضان راغي هغه دې روزه ونیسی، او علم پر وجود یې په رؤیت سره راځی، هغه رؤیت که په هر ځاي کې وی، لرې وی، او که نږدي وی، د کوچنیانو، لیونیانو، او مریضانو پوښتنه دلته نه کیږی، سې هغه علم وربانديې لری، د هغه باوجود وربانديې لازمه نه ده، ځکه هغه الله تعالی په خپله استثناء کړي دی. داسی نه ده لکه: په دریمه معنی کې، ځکه هلته شهد په معنی د حضور او اقامت ده، او مریض هم د ایات په مقابل کې ده، او هم مقیم ده، نو ځکه نه صحیح کیده، بغیر له تقدیرا تو دلته تقدیر ته ضرورة نسته.

امام غزالی ؒ په احیاء علوم الدین کې وایې: الاول مراقبة اول شهر رمضان کذلک برؤیة الهلال فان غم فباستکمال ثلاثین یوما من شعبان والغنی بالرؤیة العلم وذلک یحصل بقول عدل واحد، آه. یعني سې رؤیة په معنی د علم ده، او شارح یه په اتحاف السادة المتقین کې وایې، لغنی بالرؤیة العلم الشرعي الموجب للعمل وهو غلبة الظن وکذا صرح به اصحابنا، یعني مراد په رؤیت سره علم ده هغه ګمان ده، نه یقین.

او ابن حجر هیتمي ؒ په فتاوی الکبری کې وایې: ولوقال ان رایت الهلال فانت

طالق، فرآه غيرها وعلمت به طلقت، اذا الرؤية شرعاً بمعنى العلم بدليل قوله صلى الله عليه وسلم (اذا رأيتم الهلال فصوموا) كه يو سړي وښځي ته وويل كه تا مياشت وليده نو ته طلاقه يې، مياشت بل چا وليده او دا يې پړي خبره كړه بس طلاقه سوه، ځكه په شريعت كې رؤيت په معنى د علم ده، په دليل ددي قول د مبارك ﷺ كه تاسو مياشت وليده نو روزه ونيسي، يعني دلته رؤيت په معنى د علم ده، ځكه تول خلك خو مياشت نسي ليدلي.

او علامه جصاص ؒ په احكام القرآن كې وايي: (فمن شهد منكم الشهر فليصمه) وقد اريد بشهود الشهر العلم به لأن من لا يعلم به فليس عليه صومه فلما صح له العلم بأن الشهر ثلاثون يوماً برؤية اهل البلد الذين رأوه وجب عليه صومه آه. مراد په شهود الشهر سره علم راوستل دي پر مياشت باندې، ځكه كه څوك په مياشتې علم نلري پر هغه روزه نسته آه.

او ابن قدامه ؒ وايي: ولنا قوله تعالى (فمن شهد منكم الشهر فليصمه) قال وقد ثبت ان هذا اليوم من شهر رمضان شهادة الثقات فوجب صومه على جميع المسلمين ولأن شهر رمضان ما بين الهلالين وقد ثبت ان هذا اليوم منه في سائر الاحكام من حلول الدين ووقوع الطلاق والعتاق ووجوب النذر وغير ذلك من الاحكام فيجب صومه بالنص والإجماع آه. سې په شهادة د معتبرو خلكو سره دا ثابته سی، دغه ورځ د رمضان د مياشتې ده، نو ددي ورځې روزه په ټولو مسلمانانو واجب ده. او بل شهر رمضان خو د ۲دوو هلالينو په منځ كې ده، په عربي كې سې مياشت د يو ي (۱) يا دوو (۲) يا درو (۳)ورځو وی، نو هلال ورته وايي

د روزي میاشت سې خلک وويني له هغه ځاي د رمضان میاشت شروع سوه، بیا د اختر تر میاشتې پورې د دغو دوو (۲) میاشتو په منځ کې نه ويشت (۲۹) شپې وي، او که دیرش (۳۰) وي، دغو شپو او ورځو ته شهر رمضان وايي، نو که یو چا دین "پور" تر روزي معلق کړي وو، یا یه طلاق، عتاق، یا یه نذر معلق کړي وو، سې هر وخت د رمضان د میاشتې وجود ثابت سي، بس د پور وخت پوره سو، طلاق او عتاق واقع سو، او نذر واجب سو. سې دغه احکام ثابتیږي نو روزه هم د دغي ورځې په نص او اجماع سره ثابتیږي.

د دغه دوهم دلیل خلاصه په عربي باندې اجمالا ذکر کوو، بیا دریم دلیل ته ځو، ان شاء الله.

**الدليل الثاني:** على عدم اعتبار المطالع من كتاب الله تعالى، قوله تعالى، (فمن شهد منكم الشهر فليصمه) وقبل ذلك نذكر لكم تمهيدا ليتضح به الدليل شهر رمضان هو الشهر التاسع من أشهر السنة القمرية ومن المعروف ان العرب كانو يتعاملون وفق التقويم القمري وقد اقرّ الاسلام ذلك بقوله تعالى (يسألونك عن الاهلة قل هي مواقيت للناس والحج، البقرة ۱۹۸) وجاء النص واضحا في ربط فريضة الصيام بشهر الرمضان وفي ربط فريضة الحج بالاشهرية القمرية شوال، ذو القعدة ذو الحج، لقوله تعالى (الحج اشهر مّعلومات، البقرة ۱۹۷) واعتبر العلماء الحول المشترط الاستحقاق الزكاة سنة قمرية استنادا الي سنة رسول الله ﷺ وعمل الصحابة اما الصلوة وهي خمس مرّات في اليوم والليلة، قد ارتبطت بحركه الشمس اليومية لانها ظاهرة لجميع الناس وربط اوقت الصلوة بها ميسور للعالم

والجاهل في حين أن حركة القمر في اليوم لايمكن ربط او وقت الصلوة بها، لان القمر لايرى عادة في النهار وقد احصوا منازل القمر ثمانية وعشرين منزلة باعتبار ان اليوم التاسع والعشرين هو يوم الدخول في المحاق والخروج منه وقد اشار الله الي انضباط حركة القمر فقال (والقمر قدرناه منازل حتى عاد كالعرجون القديم، يآسين ٣٩). (هو الذي جعل الشمس ضياء والقمر نورا وقدر ه منازل لتعلموا عدد السنين والحساب) فالشهر القمري يبدأ بخروج القمر من المحاق والمحاق يشير الى الوقت الذي يكون فيه القمر بين الأرض والشمس علي الخط نفسه وهما سببان لأحكام الشريعة.

وهي على قسمين: الحكم الشرعى التكليفى، والحكم الشرعي الوضعي.

يعرّف الأصوليون الحكم الشرعي بانه (خطاب الله المتعلق بافعال المكلفين بالإقتضاء او التخير اوالوضع) و (خطاب الله تعالى) يعرف من خلال قرآن الكريم او بسنته المطهرة او مادل عليه القرآن والسنة ( المتعلق بافعال المكلفين) الى الخطاب الذي يترتب عليه فعل من المسلم المكلف بالإقتضاء الى الطلب سواء كان طلب فعل او ترك وسواء كان سبيل الإلزام اوالترجيح (اوالتخير) اى الإباحة وهي التسوية بين فعل شيء وتركه (اوالوضع) هو جعل امر من الأمو ر سببا لآ خر او شرطا او مانعا منه وقسم العلمآء الحكم الشرعي الى قسمين.

**القسم الأول**: الحكم الشرعي التكليفي وهو ما يقتضي طلب الفعل (اوالكف عنه) اوالتخير بين فعله وتركه وهو يشتمل الفرض والوجوب والسنة والإستحباب

والإباحة والكراهة والتحريم ومن امثله ذلك فرضية الصلاة وجوب الأضحية وسنتية الغسل يوم الجمعة وإباحة الوسائل وكراهة الاكل بالشمال وتحريم السرقة وغير ذلك مما هو معروف.

**و القسم الثاني:** الحكم الشرعي الوضعي وهو ما يقتضي جعل شيء او شرطا له او مانعا منه وهو ما ليس فيه طلب من المكلف بفعل او ترك بل هو بيان من الشارع يعلق امرا علي حصول امر آخر مثل اعتبار زوال الشمس سببا لوجوب الصلوة واعتبار النكاح سببا لحل المعاشرة واعتبار الوضوء شرطا لصحة الصلوة واعتبار قتل الوارث مانعا من الإرث، والسبب (هو وصف ظاهر منضبط دل دليل السمعي على كونه معرفا لحكم شرعي) فهو اذا علامة على الحكم وجودا، او عدما فاذا كانت بين هذه العلامة، وبين الحكم مناسبة يدركها العقل سمّي هذا السبب علة مثل السفر سبب لاباحة الافطار فالسفر عادة مظنة للمشقة فيناسبه الترخيص للصائم بالافطار ولذلك يقال في هذا المثال السفر سبب، او علة لاباحة الافطار اما اذا لم تكن هناك مناسبة بين السبب والحكم يدركها العقل فهو عند ذلك يسمى سببا فقط مثل غروب الشمس سببا لصلوة المغرب او رؤية هلال رمضان سبب لوجوب الصيام او إكمال العدة للشعبان وسبب صوم رمضان وان كان شهود جزء من الشهر من ليل او نهار ولكن الشهود لايثبت الا بالرؤية او إكمال العدة ولما كان الشمس والقمر سببان. فاعلم أن الشمس والقمر يختلفان بالنسبة لما يحدث من سيرهما في السماء من الاوقات فالشمس يحدث عن سيرهما وقتان، وقت خاص، او وقت عام،

**فالوقت العام**: وهو مابين الشروق الى الغروب فإنها اذا طلعت على المعمورة سمى ذلك الوقت يوما في سائر الدنيا من مشرق الشمس الى مغربها وتعلق به كل حكم يتعلق بنفس اليوم لابوقت معين منه فاذاكان ذلك اليوم يوم جمعة مثلا فهو يوم الجمعة في سائر الدنيا من مشرقها الى مغربها مع انها توجد بالشمس ويتعلق به حكم اليوم من فضيلة وخاصية تخصه كالصلوة و الخبة وكراهة الافراد بالصوم والوفاء بنذر معلق به وحلول اجل وكونه يوم عرفة، او عاشوراي، او غير ذلك فلا يكون يوم الجمعة في الحجاز ويوم السبت في الباكستان و افغانستان لأنهما قبلة بأن يقال مر الجمعة عليهما بالأمس ووصل الآن الي الحجاز ويوم خميس بالمغرب لأنه بعده كما هو الحال في الأوقات الخاصة بل هو يوم جمعة في سائر الدنيا وإن كان زواله بمكة هو عصره بالافغانستان والباكستان وزاله في الافغانستان والباكستان هو مساؤه بمكة .

**والوقت الخاص**: هو ما يتعلق بكل بلد بل وكل قرية مع غيرها لإختلافها في خطوط العرض فإنه لا يمكن ان يتحد الزوال بمدينه مع اخرى اصلا إلا اذا كانتا متحدتين في العرض فضلا عن قطر مع آخر بل لابد ان يكون بينهما التقدم وتأخر في الوقت على حسب ما بينهما من البعد والإختلاف في العرض. فالوقت الخاص له حكم يخالف الوقت العام وذلك ان الوقت العام الذي هواليوم يعم حكمه سائر الدنيا كرخصة يوم الاحد (اتوار) في زماننا وصلوة الجمعة وغيرها فإذا فرضنا ان رجلا بالهند وآخر بالصين وثالثا بالافغانستان ورابعا بالباكستان وخامسا بالإيران وسادسا بالحجاز وسابعا بالعراق وثامنا باالشام وهكذا إلى المئات

في القطار المختلفة إتفق انهم نذرو ان يفعلوا كذا من افعال البر يوم الجمعة عاشر الشهر الفلاني فإنه سيلزمهم الوفاء بأنذر في ذلك اليوم الواحد ويتفقون على ادائه فيه فيجمعهم وقت واحد وهو اليوم. والوقت الخاص لا يلزم حكمه الا الموضع الذي تحقق فيه من وصول الشمس إليه ووجودها دي المكان اللائق بذلك الوقت من سمائه فمن وجب عليه الظهر بالافغانستان فلا يجب على غيره بمكة لانه لازال لم تزل عنده الشمس ولم يدخل وقت الظهر وهكذا في سائر الاوقات فلا يمكن لاهل بلد ان ينتفقوا مع الآخر في اداء عبادة في وقت خاص وان اتفقوا في اليوم الذي هوالوقت العام واما الهلال فليس له الاوقت واحد وهو الوقت العالم فأذا تكون هلالا ورؤي في قطر فقد سمى شهرا في الدنيا كلها لا في ذلك القطر وحده كما هوالحال في وقت العام للشمس ايضا وهو اليوم الذي يعم سائر الدنيا وبيان ذلك ان القمر سيره حثيث بخلاف السير الشمس، فان المنازل الثمانية والعشرين التي تقطعها الشمس في سنة يقطعها القمر تارة في سبعة وعشرين يوما، وسبع ساعات، وثلاث واربعين دقيقة، واربع ثوان، وتارة في تسع وعشرين يوما، ونصف يوم واربع واربعين دقيقة وثلاث ثوان كما يقول أهل الهيئة بمعني انه يجتمع معها من الوقت الذي فارقها فيه في المدة المذكورة ثم هو لانور له، بل نوره مكتسب من الشمس ومستمد من مقابلته اياها فاذا ادركها في سيرها واجتمع في المنزل التي هي فيها بمعني محاذاتها اختفي عن الابصار، فاذا فارقها وابتعد عنها بمسافة قدر البعض باثنتي عشرة درجة، والبعض ظهر في السماء هلالا وسمي شهر الا ان أهل الفلك يعتبرون الشهر من وقت اجتماعه بالشمس، والشرع لايعتبره شهرا الا بعد الانفصال والرؤية او الحساب عند تعذر الرؤية فاذا رؤي في السماء فوق أي قطر

من الارض فقد سمي شهرا عند الشارع كما سمي قبل بيومين عند أهل الفلک واستحال بعد ذلک ان يعود للاجتماع والانفصال مرة اخری قبل قطعة المنازل يسمي شهرا بالنسبة لاقطار اخری ولما کان محل اجتماعه بالشمس مختلفا باختلاف المنازل والاوقات کان کذلک محل ظهوره مختلفا فتارة يظهر في سماء الباکستان قبل سماء الحجاز وتارة يظهر في سماء المغرب قبل سماء الحجاز علی حسب وقت الاجتماع ومکانه، وقطع مدة الانفصال وفي اي مکان ظهر فقد سمي شهر ولزم حکمه سائر البلاد کما تسمي اليوم يوم جمعة، او خميس ولزم حکمه سائر الدنيا.

**(۳)درېيم دليل:** له قرآن کريم څخه پردي باندې، سږ اختلاف د مطالعو اعتبار نه لري، الله جَلَّ جَلَالُهُ وايي (ولتکملوا العدة) الله تعالی د ټول رمضان په روزي باندې امر کوی، او په اکمال د ورځو د رمضان باندې امر کوی، يعني: ټولي مکملي ورځي د رمضان روزه ونيسی، نو هغه څوک سې د رمضان د مياشتې اثبات په شرعي طريقه وسی، او دي روزه نه ونيسي او په أخير کي بيا د أختر د مياشتې اثبات وسي، او د ده روزه وی، د الله د أمر مخالفت يي وکړ، اکمال د مياشتې د رمضان يي نده کړي، بلکې اکمال د رمضان يي په شوال باندې وکړ، ځکه په اول کې ورځ د رمضان ده، دي يه خوری، او په اخير کي ورځ د اختر ده، د ده روزه ده، دغه دواړي غتې خطاګاني دی.

ابوبکر جصاص ؒ، په أحکام القرآن کې وايې، واذا صام اهل مصر للرؤية تسع وعشرين يوما،واهل مصر آخر للرؤية ثلاثين يوما، فقد اوجب أصحابنا علي

الذين صاموا تسعة وعشرين يوما فقضاء يوم لقوله تعالى، (ولتكملوا العدة، البقرة ١٨٥)، فاوجب اكمال عدة الشهر وقد ثبت برؤية اهل ان العدة ثلاثون يوما فاوجب علي هؤلآء اكمالها، لان الله تعالى لم يخص با كمال العدة قوما دون قوم فهو عام علي جميع المخاطبين ويحتج له بقوله تعالى (فمن شهد منكم الشهر فليصمه) وقد أريد بشهود الشهر العلم به لأن من لايعلم به فليس عليه صومه، فلما صح العلم بأن الشهر ثلاثون يوما برؤية أهل البلد الذي رأوه وجب عليه صومه آه.

وهكذا ذكر في كتب اصحابنا، الحنفيةؒ يعني: كه يوچا نوىشت روزي له ديده ونيولى، او بل ځاي خلكو ديرش نيولي وى هم له ديده، هغه اول خلک به د يوې ورځې قضاء راوړي، ځكه الله جل جلاله وايي سې د رمضان مكمله مياشت روزي ونيسي، او دغه حكم ټولو خلكوته ده، او حال داده سې اولو خلكو مكمله مياشت روزه نه ده نيولى، او دغه مسئله زموږ په ټوله فقه كې ذكر ده،

(۴) **څلورم دليل**: له قرآن كريم څخه پر عدم اعتبار د مطالعو باندې، (ان عدة الشهور عند الله اثنا عشر شهرا في كتاب الله يوم خلق السمٰوٰة والارض) مراد له شهر څخه مياشت ده يعني هلال، او يا مابين الهلالين ده يعني هغه نوىشت يا ديرس شپې، او ورځې دى، په حديثو مباركانو كې پر هلال د شهر اطلاق سوي ده، لكه په دغه حديث شريف كې (فان غم عليكم الشهر) اي الهلال، او په بعضو احاديثو مباركانو كې بيا هلال ذكر وى او مراد ځيني شهر وى، او شهر په معني د مابين الهلالين وى، لكه په دي حديث مبارک كې،

(صوموا الهلال لرؤيته وافطروا لرؤيته، فأن غم عليكم الهلال فعدوا ثلاثين) مقصد دادہ سې شهر په معني د هلال، او يا په معني د مابين الهلالين، او هلال يوه وې په اجماع د اهل هيئت او فلكيات، او الله ﷻ اعلان كړي ده، سې په كال كې دوولس ١٢ مياشتې دي، نو دا معلومه سوه سې ټولې نړۍ ته دغه ١٢ مياشتې دي، تكرر په نسبت و هيوادونو او ولاياتونو ته نه قبلوي، ځكه كه د يو هيواد خپله مياشت وي، نو بيا خو تعداد زيات سو، ١٢ نه سوي، او يا به يوې (١) شهر (مياشتې) ته دوي (٢) هلالي ثابتې وي، يعني و دغه نو يست او يا ديرس شپو او ورځوته به دوي (٢) هلالي ثابته وي، يوه به د سعودي عرب وي، مثلا: او بله به د پاكستان وي، لهذا دا خبره باطله ده.

**(٥) پنځم دليل:** له قرآن كريم څخه پردي باندې، سې اختلاف د مطالعو ته اعتبار نسته الله جل جلاله فرمايي: ( يسألونك عن الاهلة قل هي مواقيت للناس والحج) او (اهلة) مختته ذكر سو، سې ١٢ دي، او حكمت په مياشتو كې دا ده، سې خلك به د خپلو مصالحو، پورو، او وعدو وختونه په معلومه وي، او دحج وخت په معلوميږي،نوكه بالفرض د هرچا خپله مياشت سي، نو دغه مقصد، او حكمت سې د مياشتې په تخليق كې الله ﷻ ايښي وو، هغه فوت سو، يعني د خلكو لپاره ميقات نه سو، بلكې اختلاف او قات سو، ځكه يو كس به وايي سې وخت پوره ده، بل به وايي سې نه ده پوره، اختلاف جوړ سو له دغې وجې، سې اوس خلك په انګليسي او شمسي حساب باندې معاملې سره كوي، او اسلامي قمري حساب پاته ده، كه د ټولو خلكو يوه مياشت سي، دغه اختلاف به هم ختم سي.

**والدليل الخامس:** قوله تعالى (يسألونک عن الاهلة قل هي مواقيت للناس والحج) والاهلة اثنا عشر هلالا وهي مواقيت للناس بالرؤية فاذا روي الهلال في اي مكان كان فقد سمي شهرا وحصل به الميقات للناس الذي جعله الله تعالي لضبط المصالح والوعود والآجال في الديون وغيرها. فاذا كان لكل قوم هلال فقد خرج عن المقصود من ضبط الامور ولم يبق ميقاتا، بل صار اختلاف اوقات.

**شپږم دليل:** له قرآن كريم څخه پردي باندې، سې اختلاف د مطالعو نده معتبر، الله ﷻ فرمايي، (هو الذي جعل الشمس ضياء والقمر نورا وقدره منازل لتعلموا عدد سنين والحساب) او الله ﷻ فرمايي، ( الشمس والقمر بحسبان ) لمر او سپوږمي پخپل حساب چليږي، د دي لپاره سې تاسي د كلو شمار او حساب وربانديې معلوم كړي، نو سې د هر ښار، كلي، او وطن خپله مياشت سي، بيا دغه مقصد فوت سو،

**الدليل السادس:** قوله تعالى (هو الذي جعل الشمس الآية) ( والشمس والقمر بحسباب ) اي يجريان بحساب ونظام في منازلهما لنعلم بذلک الاوقات، ونضبط السنين والحساب، وزعم تعدد الاهلة في كل شهر بالنسبة لكل بلد يناقض هذه الآيات.

(۷) اووم دليل: له قرآن کريم څخه پر دي باندې، سې اختلاف د مطالعو اعتبار نه لري، دا قول د الله ﷻ ده، (انا انزلناه في لية القدر الاية) الله ﷻ وايي موږ قرآن د ليلة القدر په شپه را نا زل کړ، قرآن کريم له لوح محفوظ څخه وبيت المعمور ته الله ﷻ په يو ځل باندې په شب قدر کې را نازل کړ، او بيا يه، وځمکې ته تقريبا په ۲۳ کاله کې نجما نجما، "ليږ ليږ" را نازل کړ، دلته دوي(۲) خبري قابل غور دی، يوه داده سې په اجماع د امت سره ثابته ده، سې قرآن يو په ځل نازل سوي ده، نو معلومه ده سې ليلة القدر يو ده، که د هر وطن ليلة القدر جلا سې نو به د قران کريم نزول هم متعدد سی، او دا باطله ده، او که يو څوک ووايي: سې قرآن په سعودي کې نازل سوي ده، نو له ليلة القدر څخه د سعودي ليلة القدر مراد ده.

موږ وايو: يو خو آيت مبارک مطلق ده، دغه تخصيص دليل غواړي، او بل د نورې دنيا لپاره ليلة القدر ختم سو، ځکه د لية القدر فضيلت په وجه د نزول د قرآن سره ده، قرآن هغه د سعودي په شپه کې نازل سوي ده، او دا باطله ده، ځکه سې د ليلة القدر فضيلت د ټولي نړۍ مسلمانانو ته ثابت ده، نو د ټولي دنيا و مسلمانانو ته به يوه شپه منظوره وی، او يو نزول به ثابت وی، او بل پر دي خبره په دغه آيت مبارک کې دليل موجود ده، الله ﷻ ليلة القدر ذکر کړي ده، ليال القدر يه نه ده ذکر کړي، او که يو څوک ووايي: سې سمه ده د قران کريم نزول يو ځل وو، په ليلة القدر کې نازل سو، دغه ليلة القدر نسبت وسعودي ته (۲۱) د رمضان وو، مثلا: او موږ ته (۲۲) د رمضان وو، داسې دې سی، لکه لمر تور سو، بي

نوره سو، مثلا: په پاکستان کې (۱۰) بجي دی، او په سعودي کې (۸) بجي دی، توریدل یو دی، مګر وختونه یې بدل دی، موږ وایو دغه بلکل غلط ده، او قیاس مع الفارق ده ځکه یو خو د افغانستان، پاکستان او سعودي تر منځ پوره ورځ او پوره شپه فرق نسته، بلکې (۲) یا (۳) ساعته فرق لري، دوهم: که بالفرض دغونه فرق موجود سی، بیا به الله ﷻ، (انا انزلناه في لیلتي القدر) او یا (لیالي القدر) ویلي واي، لیلةالقدر یې نه وایو. دریېم (۸) بجي او (۱۰) بجي دا د ورځې اجزاء دی، وخت خاص ده، لکه د لمنځونو وختونه،روزه، جمعه، شب قدر، دا اوقات عامه دی، تر ټولې شپې او ورځې پورې تعلق لری، تر اجزاوو د ورځې او شپې تعلق نه لری، لهذا د یوه قیاس کول پر هغه بل باندې دا قیاس مع الفارق ده، او دا تفصیل مخته په دوهم دلیل کې ذکر سوي ده، او دغه رنګه په دغه سورة مبارک کې نور دلائل هم سته الله ﷻ وایي: (تنزل الملائکة والروح فیها بإذن ربهم من کل امر سلام هي حتی مطلع الفجر) فرښتي او جبرائیل علیه السلام ځمکې ته د الله ﷻ په إذن را کښته کیږی، په دغه شپه، په هر کار کې امان، او سلامتیا ده له شر او أفت څخه. او دغه شب قدر په دغه صفت او برکت سره تر سپیدو را چودلو پورې وی، په احادیثو مبارکانو کې راځی، سې له جبرائیل علیه السلام سره د پرښتو یو جماعت په دغه شپه ځمکې ته را کښته سی، د بیت الله پر سر یو زرغون بیرغ و دروی، او د جبرائیل علیه السلام سل وزره (۱۰۰) دی، له دغو سلو وزرونو څخه دوه (۲) وزره دی، سې هغه صرف په دغه شپه غوړوی، سې کله وزرونه وغوړوی، له مشرق نه تر مغرب پورې ورسیږي، او بیا فرښتي باعث کړلي سې په دغه شپه کې د هر مسلمان پر دعاګانو امین وایاست، او په هر عبادت

کونکي سلام اچوی مصافحه ورسره کوی. تر سهاره دغه حالت وی، کوم وخت سې سهار سی، جبرائیل علیه السلام فرښتو ته اواز وکړی، وایې راځي سې ځو، فرښتي ورته ووایې، سې اللهﷻ د احمد صلی الله علیه وسلم له امتیانو سره د هغوي په حاجاتو او ضروریاتو کې څه معامله ورسره وکړه، جبرائیل علیه السلام ورته ووایې: اللهﷻ په دغه شپه کې په نظر د رحمت ورته وکتل، وټولو ته یې عفوه وکړه، ما سیوا له څلورو کسانو څخه. فرښتي ورته ووایې: هغه څلور کوم کسان دی، جبرائیل علیه السلام ورته وایې: شراب خواره، د مور او پلار نا فرمانه، وصیله رحمی قطعه کونکي، او کین گر. لهذا دغه شپه د ټولو مسلمانانو لپاره یوه ده، او که یوه نسی، بلکې دوي سی، او یا دري سی، نو د جبرائیل علیه السلام او فرښتو راتګ او دغه معافي وغیره، هم دوه (۲) یا دري (۳) ځله سی. او سره له دي سې دا په هیڅ دلیل نه ده ثابته، سې د جبرائیل علیه السلام، او د فرښتو راتګ بار بار ده، بلکې په دغه سورة مبارک کې تصریح موجوده ده، سې په یوه شپه کې را کښته کیږي، اللهﷻ فرمایې، (تنزل الملئکة والروح فیها) یعني د قرآن د نزول په شپه. نزول خو یو ځل ده، یعني اللهﷻ دوه ځایه ضمیر د مفرد ذکر کړي ده، (فیها) او (هي) دلته یوه بله مسئله هم حل سوه، کڅه هم له موضوع وتلي ده، هغه داده سې الله ﷻ یو ځل یوه ورځ او یا شپه افضله کړی، بیا هر وخت سې هغه ورځ او یا شپه مکرره سی، هغه فضیلة ورسره وی، لکه د لیلة القدر شپه، ځکه قرآن خو یو ځل نازل سوي ده، د هغه کال په شپه کې، مګر دغه شپه هر کال فضیلة لری.

**(۸) اتم دلیل:** له قرآن کریم څخه پر دي باندې، سې اختلاف د مطالع لره اعتبار نسته. الله ﷻ فرمايې (انا انزلناه في ليلة مباركة إنا كنا منذرين فيها ليفرق كل امر حكيم سورة الدخان-الآية ۳-۴)، په دي أيات مبارک کې د مفسرينو إختلاف ده، بعض وايې: سې په دغه آيت مبارک هم ليلة القدر مراد ده. او بعض وايې سې ليلة البرائة د "شعبان پنځلسمه" ځيني مراد ده، سې موږ يې د برات شپه بولو. په اخيرني تقدير دا ده، الله فرمايې: موږ قرآن کريم په مبارکه شپه کې نازل کړ، يعني له لامکان څخه و لوح محفوظ ته، د دغه نقل په کيفيت الله ﷻ عالم ده، سې څنګه يه نقل کړ، او دغه نقل يو ځل سوي ده، نو له دي دا معلومه سو ه، سې دغه شپه د دنيا لپاره يوه شپه ده، که د هرچا خپله شپه سي، نو د قرآن کريم نقل به هم بار بار سی، او دا باطله ده. او دوهم په دغه آيت مبارک کې ذکر دی، سې الله ﷻ په دغه شپه کې د هر انسان د کال ليست فرښتو ته له لوح محفوظ څخه را اخلی، او ورته سپاری يه، يعني په کال کی، سې انسان ته څه پيښيږی، مرګ، درد، صحت، بيماری، غم، خوشحالی، رزق، حج، وغيره، نو دغه شپه که مکرره سي، يعني که د هر هيواد خپله شپه سی، نو دغه سلسله به هم مکرره سی، بار بار به الله ﷻ، فرښتي حاضره وی، او دغه ليستونه به ورکوی، او دا هم باطله ده، پردي باندې هيڅ عقلی او نقلی دليل نسته، لهذا دغه شپه د ټولو خلکو لپاره يوه شپه ده، او پر دغه اتحاد باندې، ډير دلائل موجود دی، مثلا قمري هجري تاريخ ده، دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت له ورځی را شروع ده، دغه ورځ ټولې دنيا ته يوه وه، او يا د اسلامي تاريخ د شروع ورځ، دغه

شروع ټولې دنیا ته یوه وه، أوس هم باید یوه وی، فرق نسي پکښې را، ځکه که ورځ تیریږي او که شپه، پر ټولو تیریږي، که داسې نه سی، نو بیا باید دغه سني (مفرد/سنة) یوه نسی، د هر چاء خپله سنه سی، قمري هم باید دوي۲سی، شمسي هم باید دوي۲ سی، او دغه انګریزی تاریخ هم باید په دنیا کې دوه۲ سی، او جمعي هم باید دوي۲ سی، هفته او اتوار هم باید دوه/دوه ۲ سی، دغه رنګه دغه نورې ورځی هم باید سره وویښل سی. او رسول الله صلی الله علیه وسلم وایې: سې الله ﷻ د شپه په اوله حصه کې، او په بل ځاي کې ذکر دی، په اخیره حصه کې، او په بل حدیث کې ذکر دی، په نصف د شپي کې، د دنیا و اسمان ته، بلا کیف راځی، او بیا یو اواز کونکې اواز وکړی، سې یو غوښتونکی سته، سې غوښتنه یه پوره کړم، یو مغفرت طلب کونکی سته سې مغفرت ورته وکړم، نو أوس که اختلاف د مطالعو معتبر سی، او د هر هیواد د شپي اوله حصه یا اخیره حصه، مثلا واخلي، نو د الله ﷻ د غه بلا کیف او سیدل به دائمې سی، ځکه په ټول شبانروز کې داسې وخت نسته سې په یو هیواد کې دې د شپي اوله حصه یا اخیره حصه نه وی. مثلا د مشرقي هیواد د شپي اوله حصه شروع ده، سې د هغه ځاي اوله حصه ختمه کیږی، د مغرب طرف ته د دغه بل ځاي اوله حصه شروع ده، سې د هغه اوله حصه ختمیږی، تر هغه د مغرب طرفته د بل ځاي دا شروع کیږی، دغه رنګه به همدا سلسله دائمې وی. او دا محال او نا ممکن ده، ځکه په دائمې کې بیا بیا راتګ نه وی، او رسول الله صلی الله علیه وسلم محاله او نا ممکنه خبره نه کوی. او دغه رنګه د جمعي په ورځ یو د مقبولیت ساعت ده، دغه ساعت که د ټولې دنیا سره یو نه سی، او د هر چا خپل ساعت سې، نو دغه د إجابت وخت به دائمې سی.

ځکه په شبانروز کې داسی وخت نسته، سې یو ځای دې د زوال وخت نه وی. بلکې خامخا یو ځای د زوال وخت وی سې یو ځای ختم کیږی، بل ځای شروع کیږي. لهذا ساعت د مقبولیت یو ده، او دغه رنګه د الله ﷻ را تګ اسمان ته په شپه کې یو ځل ده.

که یو څوک پوښتنه وکړی؟ سې په دغه طریقه خو ډیر خلک بې برخې پاتې کیږی، ځکه د جمعې په ورځ سې په یو هیواد کې زوال راسی، په نورو هیوادونو کې زوال بلکل راغلي نه وی، نو هلته خو بیا دغه ساعت وجود نلری. او دغه رنګه سې په هیواد کې د شپې اوله حصه وی، او په نورو هیوادونو کې شپه بلکل شروع سوي نه وی.

موږ په ځواب کې ورته وایو سې د جمعې په ساعت کې مختلف اقوال دی، او دغه رنګه د شپې په وخت کې مختلف اقوال دی. ددې موږ تطبیق کوو په داسې طریقه باندی، سې اصل وخت د حجاز ده، ځکه قرآن هلته نازل سوي ده، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اوسیدلو ځای وو. د شپه یوه حصه تقریباً څلور ساعته وی، په حدیث شریف کې اوله حصه او اخیره حصه او نصف ۳درې سره ذکر دی، د پاکستان افغانستان او سعودی د شپې حصه سره شریکه ده، نو سې د الله ﷻ د نزول ساعت یو وی، خو دغه ساعت په بعضی هیوادونو کې د شپې اوله حصه وی، او دغه وخت په بل هیواد کې د شپې نصف وی، او په بل هیواد کې د شپې اخیره حصه وی، او ټول اسلامي هیوادونه په دغه ۳درو حصو کې سره شریک دی، داسې اسلامي هیواد نسته، سې هغه دې له درو حصو خارج وی، او په دې کې

د الله جَلَّ جَلَالُهُ دغه حکمت وو، سې د رسول الله ﷺ په خوله داسې خبرې جارې کوی، سې په ټوله اسلامي نړی تطبیق کیږی، لهذا زموږ هر ځواب په نسبت و اسلامي نړی ته ده، ټولی دنیا ته نه ده، ځکه په أوس وخت کې د وسائلو په وجه دا معلومه ده، سې د ټولي دنیا شپه او ورځ سره ګډه نه وی، بلکې دنیا ګُره ده، د ساینس او د فلکیاتو په نظر پر نیمه دنیا شپه وی، او پر نیمه دنیا ورځ وی، د الله جَلَّ جَلَالُهُ حکمت ده، سې د اسلامي هیوادونو شپه او ورځ سره یوه وی، کڅه هم تقدیم او تأخیر یې په دخول او خروج کې وی، او په ساینس موږ تر هغه وخته عمل کولي سو، تر څو سې یه زموږ له شریعت سره ټکر نه یې راغلي، او دغه رنګه د جمعي ساعت راواخله، په هغه کې له زواله نیولي بیا تر مغربه پورې اقوال کې موجود دی، مثلا ساعت و اسلامي نړی ته یو ده، متعدد او دائمی نه ده، خو صرف دونه فرق یې ده، سې په یو هیواد کی پر یوه بجه (۱) وی، بعینه دغه وخت په بل هیواد کې دوي (۲) بجي ده، او په بل هیواد کې دري (۳) بجي وی، دغه رنګه څه تر غروب الشمس پوری.

**الدليل السابع والثامن:** ان المواسم والاوقات الفاضله لا تعدد ولا تتكرر فليلة القدر اخبرالله تعالى انها في رمضان و عينة السنة انها في اوتار العشر الاواخر منه كما قيل انها ليلة العيد وقيل انها في اول ليلة من رمضان فعلى زعم من يقول ان رمضانهم بعد الحجاز بيوم فان الاوتار اللتي هي مظان ليلة القدر بالمغرب ستكون عند المشارقة اشفاعا واوتارهم ستكون عند المغاربة اشفاعا، اول الرمضان عند الناس ستكون عند الباكستانين من

شعبان وهكذا يوم عرفة يكون عندهم اليوم الثامن غالبا ويوم الاضحى يصومونه على انه عرفة ويوم عاشورى يكون عندهم التاسع غالبا ونصف شعبان يكون عندهم الرابع عشر غالبا وهكذا يحرمون من مزايا تلك الليالي والايام وما اعده الله فيها من الكرامات والفضائل وغفران الذنوب و محوالسيئات وإجابة الدعوات وغير ذلك من الخطأ الواضح زعم انها تتكرر بإختلاف البلاد المختلفة المطالع بل هذا فوق الخطاء بمراحل فان الله سماها ليلة القدر لا ليالي القدر واخبر سبحانه انه يفرق فيها كل أمر حكيم ويقدر فيها الآجال والارزاق ولذلك سميت ليلة القدر وينزل الله تعالى فيها الملائكة الى الارض والروح الآمين حتى تعمر بهم الارض ويمتليء بهم الفضآء حتى إنهم يضعفون نورالشمس ويحولون بين قوتها وسلطانها على الارض لكثرتهم كما ورد في الاحاديث فمن المستحيل ان يحصل هذا في ليلة القدر في الحجاز الذي هو محل الإعتبار بالمواسم ويوافقه على ذلك سائر اقطار الارض ثم ليلة الثانية يعيدالله تعالى تقدير الارزاق والآجال مرة اخرى، وينزل ملائكته الي الارض ويعيد كل ما كان في الليلة السابقة بعينه لاجل الباكستانيين والهنديين او قطر آخر من الاقطار إن هذا لعجب وهكذا سائر المواسم والاعياد وقد قامت الادلة العقلية والنقلية على انها لا تتكرر لا بالنسبة للوقت العام ولا بالنسبة للوقت الخاص كساعة النزول والساعة التي في الجمعة بل هما في وقت واحد وهو وقت الحجاز محل النزول للقرآن والشريعة ومحل الحرم وافضل الخلق صلى الله عليه وسلم فانه لو زعم تعددها بالنسبة لاهل كل قطر للزم عليها المحال عقلا وهو دوام النزول ودوام الاجابة ولذهب التعيين بكونها

ساعة خفيفة قليلة كما في الحديث لانه مامن وقت في الكرة الارضية الا وهو ثلث الاخير من اليل في جهة منها الذي هو وقت النزول ولازمان الا هو وقت الزوال الذي هو ساعة الجمعة والنبي صلى الله عليه وسلم لاينطق بالمحال فوجب ان تكون الساعة واحدة وبذلك جائت الاحاديث لمن تدبرها فحديث النزول ورد بثلاثة الفاظ متضمنة لثلاثة اوقات.

**اللفظ الاول**: (ينزل ربنا تبارك وتعالى كل ليلة الى السمآء الدنيا حين يبقى ثلث الليل الآخر فيقول من يدعون فأستجيب له؟ ومن يسئالني فاعطيه؟ ومن يستغرني فأغفر له؟)

**اللفظ الثاني**: (ينزل الله الى السماء الدنيا كل ليلة حين يمضى ثلث الليل الاول فيقول انا الملك من ذا الذي يدعوني فاستجيب له؟ من ذا الذي يدعوني فاعطيه؟ من ذا الذي يستغفرني فاغفر له؟ فلا يزال كذلك حتى يضى الفجر)

**اللفظ الثالث**: (اذا مضى شطر الليل او ثلثاه ينزل الله تبارك الى السماء الدنيا فيقول هل من سائل يعطي؟ هل من داع يستجاب له؟ هل من مستغفر يغفر له؟ حتى ينفجر الصبح) وكل هذه الالفاظ في صحيح مسلم من حديث ابي هريرة فاللفظ الاول الذي هو حين يبقى ثلث الليل الآخر هو الاصل وهو وقت الحجاز واللفظ الثاني الذي هو حين يمضى ثلث الليل الاول هو بالنسبة الى البلاد التي بينهما وبين الحجاز اربع ساعات فاكثر كالبلاد التي تكون في جهةالمغرب من الحجاز فانه عند مضى الثلث الليل الاول به يدخل الثلث الاخير بالحجاز

فيكون وقت النزول بالحجاز في الثلث الاخير على في الرواية الاولى هو الثلث الاول في المغرب على ما في رواية الثانية فمن اراد مصادفة ذلك الوقت فيلقم عند مضى الثلث من الليل بالمغرب وفي البلاد القريبة من الحجاز يدخل وقت النزول فيها عند مضى نصف الليل الموافق للثلث الاخير بالحجاز وهي المخاطبة بحديث (اذا مضى شطر الليل) فاختلاف هذه الروايات صريح في اتحاد الوقت وعدم تكرره وهو الذي رفع الاشكال الوارد على الحديث وان لم يهتد اليه الكثيرون وكذلك الساعة التي في الجمعة فان فيها اقوالا كثيرة اصحها اثنان احداهما انها بعد العصر الى الغروب وهو الذي رجحه الصوفية الكرام ولذلك اختاروا ذلك الوقت لاقامة حلق الذكر لقوله صلى الله عليه وسلم في الحديث القدسي عن الله تعالى (من شغله ذكرى عن مسئالتي اعطيته افضل ما اعطى السائلين). والقول الثاني انها ما بين جلوس الخطيب علي المنبر الى انقضاء الصلوة وهذا الوقت في البلاد البعيدة عن مكة يصادف ما بعد العصر الي الغروب والمقصود ان الاوقت الفاضلة ذات المزايا والخصوصيات كلية القدر لا تعدد بل هي متحددة وذلك يدل على اتحاد الشهر في الدنيا كلها وعدم الاختلاف المزعوم خذ، ما صفا، ودع ما كدر، والله اعلم بحقيقة الحال.

(۹)**نهم دليل**: پر عدم اعتبار د اختلاف د مطالعو له سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم، په صحيح سندو ډيرو صحابه کرامو روايت نقل کړي ده، مثلا عبد الله ابن عمر رض، او عبد الله ابن عباد رض، او ابو هريرة رض، او عمر بن خطاب رض، او جابر بن عبد الله، او ابو بکرة، او رافع بن خديج رض،

او طلق بن علي رض، او ام المؤمنين عائشة صديقة رض، او حذيفه رض، او براء ابن عازب رض او اسامه بن عمير رض، او داسې نورو صحابه کرامو روايت نقل کړي ده، وايي: سې رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: (صوموا الرئيته وافطروا لرئيته فان غم عليکم فاکملوا العدة الثلاثين) دغه مبارکه مياشت په نورو سندو او په نورو الفاظو هم ذکر ده، رسول الله صلی الله عليه وسلم وايي: د ديد له وجې روزه ونيسئ، او د ديد له وجې يې ماته کړئ، يعني (اختر) جوړ کړئ، او که پر تاسو باندې مياشت پټه سوه نو بيا دشعبان ديرش ورځې پوره کړئ، بيا روزه ونيسئ. دغه تفصيل مخته هم ذکر سو ،سې د شعبان په (۲۹) ورځ، يعني د ديرسم (۳۰) په شپه به خلک و مياشتې ته ګوري، که يې وليده نو ټول خلک به روزه ونيسي، او که يې نه وليده بيا به د شعبان ديرسم (۳۰) ورځ هم د شعبان سره يوځاي کړي، ديرس (۳۰) ورځې د شعبان به پوره کړي ځکه په هره مياشت کې اصل ديرس (۳۰) ورځي دي، بيا به روزه ونيسي، تر (۲۹) پورې. د رمضان د ديرسم په شپه به مياشتې ته ګوري، که يې وليده، سهار به اختر جوړ کړي. او که يې نه وليده، د رمضان ديرس (۳۰) ورځې به پوره کړي، بيا به اختر جوړ کړي، کڅه هم مياشت نه و ويني. دغه حديث مبارک صريح او قاطع دلالت کوي پر وجوب د اتحاد او پر حرمت د اختلاف او پر ظلم او تعدي د هغه چا سې د رمضان په اوله ورځ روزه خوري، او د اختر په ورځ يې بيا روزه وي، او د مياشت په ديد هم يقينې خبر وي، سې په فلان او فلان ځاي کې ليدل سوي ده،ځکه سې په (صوموا) او (افطروا) کې خطاب به خالی نه وي، يا به هغه چاته وي، سې له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره حاضر وو، او يا به د امة مسلمة هر فرد فرد ته وي،

او یا به مجموع امت ته وی، څلورم احتمال نلری.

(۱) **اول احتمال**: په اجماع سره باطل ده سې رسول الله صلی الله علیه وسلم خطاب صرف حاضرینو ته کوی، سې د مایشت د لیدلو د وجې روزي ونیسئ او یا اختر جوړ کړئ، ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم خطاب او أمر ټول امت ته وی، له بعثة نه بیا تر قیامته.

(۲)**دوهم احتمال**: هم باطل ده سې خطاب هر فرد فرد ته سی، ځکه د ټولو خلکو لیدل نا ممکن ده. بعضي ړانده وی، بعضي ضعیف النظر وی، بعضي مریضان وی، او بعضي بندیان وی، بلکې په دید باندې بالذات روزه موقوفه نه ده. او دغه رنګه په ډیرو احادیثو باندې ثابته ده، سې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو کس یا دوه کسان له بله ځایه راغلي دی، او ویلې دی، سې موږ تیره شپه په خپل ځای کې میاشت لیدلي ده، او رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوي لیدل معتبر کړي دی، او په خلکو کې یې په نیمه ورځ د روزي اعلان کړي ده . او دغه رنګه په نیمه ورځ یې د اختر اعلان هم کړي ده. لهذا د هر فرد فرد لیدل لازم ګڼل باطل ده.

**نو (۳)دریيم**: احتمال متعین سو ، سې خطاب مجموع امت ته ده. یعني له ټول امت څخه یه سې یو څوک ووینې او نور په خبر سي، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وایې (صوموا الرؤیته وافطروا الرؤیته) ټول روزه ونیسئ، د روزي

د میاشت د لیدلو په وجه. او اختر جوړ کړئ د اختر د میاشت د لیدلو په وجه.

**(۴)څلورم احتمال:** که د حدیث شریف په الفاظو کې که یوڅه په غور وکتل سی، دا واضح ځینې معلومیږی، سې نه د هر فرد لیدل غواړی، او نه هري علاقي (کلی) ته د علاقي لیدل غواړي، ځکه (صوموا) او (افطروا) دواړې صیغې جمع امر حاضر دی. او په (لرؤیته) کې (ه) ضمیر مفرد غائب ده راجع و هلال ته ده.او لام په (لرؤیته ) کې د تعلیل لپاره ده، او رؤیة مطلق ده، مضاف ده ضمیر د هلال ته. صوموا، او افطروا، یه دواړه تر مطلق رؤیة د میاشتې معلق کړي دی، ژباړه یې داسې کیږی، اي مؤمنانو! یا اي حاضرینو! روزه ونیسئ او اختر جوړ کړئ له جهته د لیدلو د میاشتې، هغه لیدل که په هر ځاي کې وی. ځکه خو مطلق ذکر ده، که مطلق رؤیة کافي نه واي، نو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم (لرؤیته) نه ویل، بلکې (لرؤیتکم) او یا (لرؤیة جمیع المؤمنین) په ویل.یعني ستاسو او د اختر علت او سبب د میاشت لیدل دی، دغه د حدیث شریف خلاصه ده. مګر افسوس صد افسوس په اوس وخت کې خلک بلکې علمآء کرام د رمضان د فرضیت په سبب او علت باندې خبر وی، سې په فلان ځاي کې ثابته سوي ده، او رمضان په خپل ځان فرض نه بولی، بلکې نیول یې نا جائز بولی، وایې د هیواد خپل اعلان نده سوي، العیاذ بالله په دي نه پوهیږي سې په وخت د معصیت د خالق ﷻ کې، د مخلوق إطاعت نسته، او په دي هم نه پوهیږی، سې إطاعت یه د امر واجب وی د سکوت اطاعت نه واجبیږی، ځکه دلته خویې د نه نیولو حکم نه ده کړي، بلکې صرف دومره وایې، سې موږ میاشت نه ده لیدلی. او په دي هم نه پوهیږی سې

روزه عبادت ده، لکه لمونځ، معامله نه ده، د قاضي و قضاء ته ضرورت نسته. او په دي هم نه پوهيږي سې د کوم قاضي حکم واجبيږي، او په کوم وخت کې واجبيږي، او ايا دغه خلک قاضيان دي او که نه.؟

**الدليل التاسع**: ما تواتر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم بالأسانيد الصحيحة من حديثابن عمر وابن عباس وابي هريرة وعمر بن الخطاب وجابر بن عبدالله وابي بكرة ورافع بن خديج وطلق بن علي وعائشة وحذيفة والبرآء بن عازب ورجال من اصحاب الرسول الله صلى الله عليه وسلم واسامة بن عمير ان الرسول الله صلى الله عليه وسلم قال: (صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليكم فاكملوا العدة ثلاثين) وهذا الحديث من أصرح الأدلة واقطعها في الدلالة على وجوب الاتحاد وحرمة الإختلاف وإثبات ظلم من يفطر اليوم الأول من رمضان ويصوم يوم العيد مع علمه بثبوت الهلال في الاقطار الاخرى. وبيان ذلك ان الخطاب في قوله عليه السلام (صوموا وافطروا) إما ان يكون للحاضرين معه صلى الله عليه وسلم او يكون لكل فرد فرد من امته او يكون لمجموع امته ولا يحتمل اللفظ في اللغة العربية غير هذا اصلا، أما احتمال كونه خطابا للحاضرين معه صلى الله عليه وسلم فباطل باجماع المسلمين لان الكل يعلم بالضرورة أن شرعه وأوامره صلى الله عليه وسلم لازمة لامته من وقت بعثته إلى قيام الساعة، واما احتمال كونه خطابا لكل فرد فرد من امته فباطل بالكتاب والسنة والاجماع المتقين المقطوع به لكل مسلم على وجه الارض، اما الكتاب فقوله تعالى (ومن كان مريضا، الاية) فالمريض ما لزمته العدة الا بعد ثبوت رمضان في حقه وحق

غيره والمريض المضنى لايتصور ان يرى الهلال وانما ثبت في حقه برؤية غيره.

**واما السنة:** فروي الدارمي، وأبو داود، والدارقطني، والحاكم، والبيهقي.

كلهم من طريق ابن وهب عن يحيى بن عبدالله بن سالم عن ابي بكر بن نافع عن ابيه عن ابن عمر قال (تراءى الناس الهلال فاخبرت رسول الله صلى الله عليه وسلم أني رأيته فصام وأمر الناس بصيامه ) وفي حديث آخر أن أمير مكة خطب ثم قال: (عهد إلينا رسول الله صلى الله عليه وسلم أن ننسک للرؤية فان لم نره وشهد شاهدا عدل نسكنا بشهادتهما) وفي حديث آخر روي عن رجل من اصحاب الرسول الله صلى الله عليه وسلم قال: (اختلف الناس في آخر يوم من رمضان فقدم اعرابيان فشهدا عند النبي صلى الله عليه وسلم بالله لأهلا الهلال أمس عشية فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يفطروا زاد خلف في حديثه وان يغدوا الى مصلاهم)، ورواه احمد عن عبدالرحمن بن مهدى عن سفيان عن منصور، به ولفظه. اصبح الناس لتمام ثلاثين يوما فجاء أعرابيان فشهدا أنهما أهلاه بالامس عشية فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم الناس ان يفطروا عن ابي مسعود البدري قال: اصبح الناس صياما لتمام ثلاثين فجاءرجلان فشهدا انهما رأيا الهلال فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم فافطروا. ورواه دارقطني، بلفظ كنت عند عمر فاتاه راكب فزعم أنه رأى الهلال فامر الناس ان يفطروا وفي رواية له ايضا: ان عمر اجاز شهادة رجل واحد في رؤية الهلال في فطر او اضحى. فهذه سنة النبي صلى الله عليه وسلم القائل ( صوموا لرؤيته) تبين انه ليس المراد بالخطاب كل فرد فرد من الامة بل مجموعها لانه قد اكتفى برؤية الرجل

الواحد والرجلين والراكب وامر الامة بالصوم والافطار لرؤيتهم واما الاجماع فهو معلوم بالضرورة لكل مسلم لانه يعلم ان الصيام لازم لكل فرد فرد من المسلمين بما فيهم الأعمى والمحبوس ومن لم تمكنه الرؤية اصلا وأنهم يكتفون برؤية غيرهم كما يعلم ان البلد الكبير بل القطر العظيم يراه فيه عدلان او جماعة قليلة فيثبت القاضي الصوم برؤيتهم فيصوم سكان قطر العظيم الذين يصل عددهم الملايين برؤية عدلين او عادل واحد فبطل ان يكون المراد بالخطاب كل فرد فرد من الامة وتعين ان يكون الخطاب لمجموعها. وحيث إنه كذلك: فإذا رآه بعضهم فقد لزم جميعهم بالنص لانه صلى الله عليه وسلم قال: (فإن غم عليكم فاكملوا العدة) وهو لم يغم علينا مع رؤية بعضنا فوجب علينا ان لانكمل العدة كما غم على رسول الله صلى الله عليه وسلم واصحابه وقدم ركب من بعيد فاخبره برؤية كما اخبره به مرة أخرى عبدالله بن عمر ومرة أخرى رجل اعرابي فصام لرؤيتهم ولم يعتبره غم عليهم وكذلك فعل عمر بن الخطاب مع الرجل القادم من المغرب وقال يكفي المسلمين رجل واحد وقال النووي في شرح مسلم عند قوله صلى الله عليه وسلم: (صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته) المراد رؤية بعض المسلمين ولا يشترط رؤية عدلين وكذا عدل على الاصح في الصوم

(١٠) **لسم دليل**: پر عدم اعتبار د مطالع ضمني اجماع ده په مذاهب اربعه وو كې، دري مذهبه لكه احناف، مالكية، او حنبلية، پر عدم اعتبار د اختلاف د مطالع متفق دى. او شوافع هم په قريب المسافة كې له جمهورو سره په عدم

اعتبار کې متفق دی، او په بعیدالمسافة کې دوه صحیح قولونه لری، بعضو د عدم اعتبار و قول ته صحیح ویلي دی، او بعضو د اعتبار و قول ته صحیح ویلي دی، نو تقریبا څلور سره مذهبونه پر عدم اعتبار د اختلاف د مطالعو متفق دی، او غیر مقلدین هم ور سره متفق دی، لیکن هغو ته په اجماع کې دخل او اعتبار نسته، ځکه هغه په دنیا کې جدیده طبقه ده، په سابقه زمانه کې له مذاهبو اربعه وو ماسوا بل څوک نه وو، د هر یوه مذهب د فقه کتاب سې در واخلي دغه بحث کې موجود ده، سې مذاهب ثلاثه اتفاقا او مذهب واحد اختلافا پر دي متفق دی سې اختلاف د مطالعو اعتبار نلری.

**الدليل العاشر** : الإجماع: كما قال ابن قدامة (اجمع المسلمون على وجوب صوم شهر رمضان وقد ثبت ان هذا اليوم من شهر رمضان شهادت الثقات فوجب صومه على جميع المسلمين ولان شهر رمضان بين الهلالين وقد ثبت ان هذا اليوم منه في سائر الاحكام فيجب صومه بالنص ولإجماع آه، وايضا فالإجماع منعقد على الرؤية لاتلزم كل احد ولا كل بلد قريبة فالبعيدة مثلها لان اخراج البعيدة من الاجماع قول محدث باطل الدليل بطلا محققا مقطوعا به عقلا فكان قولا لاغيا خارقا للإجماع وقال ابن عابدين: وظاهر الرواية وهو المعتمد عندنا وعند المالكية والحنابلة لتعلق الخطاب عاما بمطلق الرؤية في حديث (صوموا لرؤيتة) بخلاف اوقات الصلاة وتمام تقريره في رسالتنا المذكورة.

ردالمحتار على درالمختار، (ص١٠٥- ج ٢).

(۱۱) **یولسم دلیل:** پر دي باندی، سې اختلاف د مطالعو غیر معتبر ده، په قیاس سره ثابت ده مختته ذکر سو، سې یو وخت خاص ده لکه طلوع الفجر طلوع الشمس، زوال، غروب، ماشپین، مازدیګر، ماخوستن، د شپې اخیره حصه مثلاً: د وخت خاص حکم هم خاص وی، په یوه هیواد کې یو ځای طلوع الفجر وی، او بل ځای نه وی، یو ځای زوال وی، بل ځای نه وی، د هر ښار او کلي خپل وخت وی، او یو وخت عام وی لکه جمعه، هفته، او لیلة القدر، مثلا د وخت عام حکم هم عام وی، لکه څنګه سې وخت عام، د ورځې او د شپې تر یو جزء معین پورې تعلق نه لری، دغه رنګه یې حکم هم تر یو هیواد او یو کلي پورې تعلق نه لری، مثلا سې یو ځای جمعه وی، بل ځای به هم جمعه وی، کڅه هم نه د جمعي په ابتداء او انتهاء کې فرق وی، یو ځای وختي شروع سي بل ځای ناوخته شروع سي ، یو ځای وختي ختمه سي، او بل ځای ناوخته ختمه سی، ځکه دغه ابتداء او انتهاء خاص وختونه دی، په خاص وختو کې ضرور فرق وی، نو موږ د شهر رمضان قیاس پر جمعي باندې کوو، د رمضان د میاشتې، او د جمعي هیڅ فرق نسته، صرف دونه تعلق لری، سې دمیاشتې تعلق له شپې سره ده، او د جمعي تعلق له ورځې سره ده، که بالفرض موږ وعلم الهیئة والفلکیات ته مداخله ورکړو، نو به دغه قیاس د هغو هیوادو په منځ کې باطل کړي، سې د هغو پوره ورځ او پوره شپه فرق سره وی، یعني سې په یوه کې ورځ شروع سی، او په بل کې شپه شروع سی، او هغه هیوادونه سې د هغو شپه او ورځ سره ګډه وی، صرف په تقدیم او تاخیر کې فرق وی، د هغو په منځ کې په علم هیئة اختلاف مطالع غیر معتبر ده، لکه څنګه سې په علم شریعت کې غیر معتبر ده، مثلا په افغانستان او

پاکستان کې د جمعې په ورځ د سهار سپیدې یعنې فجر صادق پر پنځه بجې (۵) راوخیږي، بس د جمعې ورځ شروع سي، په دغه وخت کې په سعودي کې شپه شروع وی، (۲) یا ۳) ساعته وروسته یعنې پر (۷) یا ۸) بجې په سعودي کې هم فجر صادق راوخیږي هلته هم د جمعې ورځ شروع سي، بیا زموږ په هیوادو کې د ماشپین وخت داخل سی، د جمعې لمنځونه شروع سی، (۲) یا (۳) ساعته وروسته بیا په سعودي کې د ماشپین وخت داخل سی، دغه رنګه زموږ په هیوادو کې پر شپږ۶ بجې مثلا لمر ولویږی، د جمعې ورځ ختمه سی، او د شنبې شپه شروع سی، دري ساعته وروسته په سعودي عرب کې لمر ولویږی، شپه شروع سی. نو روځ مو هم سره یوه ده، او شپه مو هم سره یوه ده، صرف دوه یا دري ساعته په خروج او دخول کې فرق سره لري، د دغه شنبې په شپه که په سعودي کې میاشت ووینی، دغه میاشت زموږ د هیوادونو هم بلل کیږی، ځکه خو په ده کې هم د شنبې شپه ده، زموږ په هیوادونو کې هم د شنبې شپه ده، شپه مو هم سره مشترکه ده، او ورځ مو هم سره مشترکه ده، صرف دونه فرق لري، سې د میاشتې د لیدلو په وخت کې په سعودي کې ماښام وی، زموږ په هیوادو کې ماخوستن وی، پر موږ شپه وختې داخله سوي وی، او پر دوي ناوخته داخله سوي وی، لکه د جمعې ورځ سي پر موږ وختي داخله سوي وه، او پر دوي ناوخته. او په میاشتې کې داشرط نسته سې خامخا به یې د ماښام له لمانځه سره ویني بلکې د شپې په هر جزء کې سې ولیدله سي، د دغې شپې بلله کیږی، لهذا موږ د میاشتې قیاس پر جمعه او هفته وغیرهما باندې د جمعې او د شنبې په هکله اختلاف د مطالعو غیر معتبر ده، نو د میاشتې په هکله هم غیر معتبر د ه، او بیا خاص په هغو هیوادو کې سې د هغو شپه او ورځ

سره ګډه وی، لکه پاکستان، افغانستان، او سعودیة.

وهذا الرأي (أي الجمهور) هوا الراجح لدي توحيدا للعبادة بين المسلمين ومنعا من الاختلاف غير المقبول في عصرنا ولان ايجاب الصوم معلق بالرؤية دون تفرقة بين الاقطار والعلوم الفلكية تؤيد توحيد اول الشهر الشرعي بين الحكومات الاسلامية لان اقصى مدة بين مطلع القمر في اقصى بلد اسلامي آخر هو نحو (۹) ساعات فتكون بلاد الاسلام كلها مشتركة في اجزاء الليل تمكنها من الصيام عند ثبوت الرؤية والتبليغ بها برقيا او هاتفيا والاحتياط هو الاكتفاء بتوحيد الاعياد في حدود البلاد العربية بداء من عمان في الشرق الي المغرب الاقصي، الفقه الاسلامي وادلته، (ص۱۶۶۲-ج۳)

**(۱۲) دولسم دلیل :** پر دي باندي، سې اختلاف د مطالعو غیر معتبر ده، د افغانستان علماء کرام الحمد لله ټول پر دي متفق دی، سې اختلاف د مطالعو اعتبار نه لري، زما په یاد باندې په افغانستان کې د روزي او د اختر اختلاف منځته نده راغلی، الحدلله داسې ندې سوی، سې په افغانستان کې دي، ۲دوي روزي او یا دوه اختره جوړ سوي وی، بلکې د هغو طریقه داده سې د خپل هیواد په هر کونج کي سې یو څوک ووینی، ټول هیواد ته د هغه لیدل کافي ده، کڅه هم په هیواد کې دننه مطالع مختلف دي، او یا په بل هیواد کې ووینې، د هغه هیواد لیدل هم ورته کافي دي، کڅه هم هغه لیدل په سعودي کې وی. او دغه رنګه په پاکستان او هندوستان کې د احنافو جید علمآء کرام دیوبندیان وی، او که بریلویان وی، او که په بل نامه وی، ټول پر دي متفق دی، سې اختلاف د

مطالعو اعتبار نلري، له دي وجې دوي هم په خپل هیواد کې د یوځاي لیدل کافي بولي، او سره له دي سې د پاکستان اوږدوالي له مغرب په تر مشرقه کم از کم (دوه نیم زره) یا (دري زره) کلو میتره ده، او هندوستان تر پاکستان غټ ده. له دغو علمآء کرامو څخه د یو څو علماوو نومان ذکر کوم: د بریلوی حضراتو لپاره احمد رضا خان صاحب کافي ده، ځکه دوي نوموړي ته د إمام درجه ورکوی، احمد رضا خان صاحب په فتاوی رضویه کې ذکر کړي دی، سې اختلاف د مطالع اعتبار نلري په دي شرط سې په شرعي طریقه سره ورسیږي، (ص۵۲۳۔ج۴ ۔کتاب الصوم) او په دیوبندی علمآء کرامو کې هغه ذکر کوم سې هغو باقاعده پر دغه مسئله څو ورځي مجلس دائر کړي وو، او بیا یه إتفاقا یوه اعلامیه خپره کړي ده، هغه اعلامیه هم ذکر کوم او د مجلس ګډونوال هم درته ذکر کوم، سې د نوی قشر "نسل" اعتماد زموږ پر مسئله سی، ځکه په نوی نسل کې اکثره خلک دیوبندیت له حنفیت څخه هم جلا بولي، او هم د یوبندیت مقدم بولي. که د مذهب پوښتنه ځیني وکړی، دوي به په ځواب کې دیوبندي درته وایې، سې زه دیوبندي یم. خو په دي نه پوهیږي سې دیوبندیت په احنافو کې یو جدید "نوي" مسلک ده، لکه بریلویان. بلکې حقیقت داده سې موږ احناف یو، زموږ له مذهب او عقیدي سره که هر څوک موافق وو، هغه زموږ ورور او ملګري ده، که مخالف وو، هغه زموږ دښمن او بیګانه ده.

(1) صدر مجلس مولانا خیر محمد صاحب خیر المدارس ملتان. (2) محرر مولانا محمود صاحب مفتي قاسم العلوم ملتان. (3) مفتي رشید احمد صاحب دارالإفتاء والإرشاد کراچي. (4) محمد عبدالله صاحب خادم

دارالإفتاء، خیر المدارس ملتان. (5) مولانا محمد صادق صاحب ناظم امور مذھبیہ، بھاولپور. (6) محمد ناظم صاحب شیخ الجامعہ العباسیہ، بھاولپور. (7) مولانا محمود الحسن صاحب خطیب جامع مسجد، مظفر گڑھ. (8) عبد الرحمن مفتی دارالإفتاء محکمہ امور مذھبیہ بھاولپور. (9) محمد چراغ صاحب مدرس مدرسہ عربیہ گجرانوالہ. (10) محمد شفیع صاحب مھتمم قاسم العلوم ملتان. (11) مولانا جمال الدین مدرس مدرسہ خیر المدارس ملتان. (12) محمد برکت کشمیری صاحب مدرس خیر المدارس ملتان. (13) مولانا عطاء محمد کھتے ہے کہ مجھے ابھی تک شرح صدر جواب نمبر 2 اور 3 میں نہیں، تحقیق کرونگا، باقی نمبرات میں متفق ہوں. (14) فقیر شمس الدین ہزاروی کھتے ہیں کہ شرح صدر مولانا عطا محمد صاحب 2 اور 3 میں خلجان ہے، باقی سب سے متفق ہوں.

**مصدقین:** (15) ظفر احمد عثمانی تھانوی عفا اللہ عنہ. (16) محمد امیر بقلم خود غفرلہ جھوگ وینس. (17) علی محمد عفی عنہ، مدرس قاسم العلوم ملتان. (18) احقر الانام احمد علی عفی عنہ لاھوری. (19) عبد الحق عفی عنہ شیخ الحدیث مدرسہ حقانیۃ اکوڑہ خٹک پشاور. (20) مولانا محمد یوسف عفی عنہ مفتی مدرسہ حقانیۃ اکوڑہ خٹک پشاور، (21) مولانا اشفاق الرحمن دار العلوم الاسلامیۃ ٹنڈو اللہ یار سندھ (22) سعید احمد غفرلہ مفتی مظاھر العلوم سھارنپور ھندوستان (23) مظفر حسین مظاھری معین مفتی مظاھر العلوم سھارنپور (24) محمد عجب غفرلہ شیخ الحدیث معراج العلوم بنوں (25) محمد سیاح الدین مفتی اشاعۃ العلوم فیصل آباد، (26) سعید احمد مفتی سراج العلوم

سرگودھا،(27)مولانا مصالح محمد مدرس سراج العلوم سرگودھا، (28)مولانا محمد عفا اللہ عنہ انور مدرسہ تعلیم الاسلام فیصل آباد. (29)مولانا عبدالسمیع عفی عنہ مدرس مدرسہ سراج العلوم سرگودھا. (30)مولانا مسعود احمد نائب مفتی دارالعلوم دیوبند. (31)مولان سعید احمد سعید دارالعلوم دیوبند. (32)مولانا عزیزالرحمن بجوری، دارالعلوم دیوبند. (33)مولانا مسعود علی قاری مفتی انوارالعلوم ملتان. (34)مولانا احمد یار خان خطیب چوک پاکستان گجرات. (35)مولانا ابوالحسنات قادری. (36)مولانا خادم حسین صدر انجمن غلامان محمد مزنگ لاھور. (37)مولانا غلام محمد ترنم صدر جمعیت علماء پاکستان لاہور. (38)فقیر عبدالقادر غفرلہ خطیب جامع مسجد خانیوال. (39)مولانا محمد عبدالمصتفی ازھری غفرلہ. (40)نور احمد انور خطیب جامع مسجد انوارالعلوم ملتان. (41)مولانا فقیر محمد قاسم خطین جامع مسجد بستی لنڈہ ظلع مظفر گڑھ. (42)مولانا خدا بخش خطین جامع مسجد جھکڑا نوالا حاجام پور ضلع غازی خان،

## علماء کا متفقہ فیصلہ:

حامدا و مصلیا: اجتماع علماء منعقدہ ملتان مورخہ 12 ستمبر 54. مدرسہ قاسم العلوم ملتان کہ دعوۃ ہر مسائل پیش آمدہ، رؤیۃ ھلال پر غور وخوض اور بحث و تمحیص کے بعد جو متفقہ مسائل طے ہوئے. بغیر اعادہ سوالات کے حسب ذیل ہیں. اس میں اس بات کی پوری کوشش کی گئی ہیں، کہ متون معروفہ ومشہورہ کی (مفتی بہ) روایات کے خلاف کوئی بات نہ

ھو، اور اختلاف وخود رای کی جو وباء عام پھیلی ہوئی ہیں، اس کا انسداد ھو سکے، ان جوابات اور طے شدہ مسائل کے ایک ایک کاپی اور تمام اطراف واکناف کی علماء کرام کے خدمت میں پیش کی جائے گی، اتفاق اور تصدیق کے بعد جو بات حکومت سے متعلق ہیں، اس کے منظوری کی استدعاء حکومت سے کی جائے گی، وباللہ التوفیق.

(1) **پہلا:** ھلال رمضان بحالت علت خبر واحد سے خواہ وہ عادل ہو یا مستورالحال ہو، ہو سکتا ہے، اس میں شہادت شرط نہیں، البتہ ھلال عیدین میں شہادت شرائط ہونا ضروری ہیں. یعنی کم از کم دو مرد یا ایک مرد دو عورتیں ایسی ہوں، جو نیک ہو اور اشھد سے حاکم یا جماعت مجاز کے سامنے باقاعدۃ شہادت اداء کریں، بحالت صحو دونوں ھلال میں جم غفیر کے ایسے اخبار جو موجب ظن غالب ہوں، ضروری ہوں گے. اور ان کا اعتبار کیا جائیگا لیکن اگر ھلال رمضان میں بستی سے باہر آے، یا موضوع مرتفع سے دیکھنے والے ایک عادل شخص کے، یا بستی کے دو عادل بندو کے شہادت سے بھی اطمنان حاصل ہو جاے، تو اس پر حکم دیا جا سکتا ہے.

(2) **دوسرا:** ریڈیو، ٹیلیفون تار برقی خط اور اخبار میں یہ فرق ھیکہ، تار برقی اور اخبار سوای صورۃ استفاضۃ کے ہر گز معتبر نہیں، البتہ خط بشرط معرفۃ الکاتب وعدالتہ، ریڈیو اور ٹیلیفون بشرط معرفۃ صاحب الصوت وعدالتہ درجہ اخبار میں معتبر ہوں گے، شہادت میں نہیں.

(3) **تیسرا:** مجلس نے یہ بھی طی کیا ہیں، کہ اگر جماعت علماء مجاز کے سامنے تحت احکام شرع ھلال صوم یا فطر ثابت ہوجائے، اور اس کا اعلان ریڈیو میں حاکم مجاز کے طرف سے ہو، تو اس حسود ولایت میں سب کو اس پر عمل کرنا لازم ہوگا.

(4) **چوتھا:** ھلال صوم یا ھلال فطر دونوں میں دیہات اور ساتیق کے لوگوں کو، جہاء علماء یا قضاہ نہیں ہیں، صرف افواہوں پر اعتماد کرکے روزہ اور عید جائز نہیں، بلکہ اس کیلے ضروری ہیکہ عادل اور ثقہ زمہ داری کیساتھ یہ بیان دیدے، کہ فلان جگہ، میں نے علماء کا فیصلہ سنا ہے، یا وہاں متفقہ طور پر عید ہوئی اور میں خود سن کر آیا ہوں، یا میں نے مشاہدہ کیا ہے، یا میں نے منادی سنی ہے، اور اس کیلے ایسے بیان پر اہل قریۃ کو غلبہ ظن بھی حاصل ہو، اس پر عمل کرنا درست ہوگا.

(5) **پانچواں:** رؤیۃ ھلال میں جہاں جہاں استفاضہ کا لفظ آیا ہے، اس میں بھی بے سر و پاؤں افواہوں، یا مبھم اور غیر معروف لوگوں کے خطوط کا اعتبار نہی، بلکہ اس کا مطلب یہ ہیکہ حاکم وقت یا اسکے نائب مجاز یعني جماعت علماء یا عالم ثقہ کے پاس متعدد خبر دینے والے خبر رؤیۃ ھلال کو بالشرائط المرقومۃ فی الجواب السابق بیان کریں، اور اسے مخبر الیہ کو طمانینت قلب اور غلبہ ظن حاصل ہوجائے، تو اس صورۃ میں یہ طریق موجب عمل قرار دیا جائیگا، اس کے علاوہ استفاضہ میں

یہ صورۃ بھی داخل ہے، کہ حاکم یانائب یاعالم ثقہ فی القریۃ کے پاس متعدد خطوط یاٹیلیفون یاتار توسط یابغیر توسط کے ایسے اور اتنے خبر آجائے، کہ اسکے طمانینت قلب ہوسکے.

(6)چھٹواں: اگرھلال رمضان میں خبر واحد عادل یاخط وغیرہ پراعتماد کرتے ہویں روزہ کاحکم دیاگیا اور تیس روزے پوری ہوجانے کے بعد بھی رؤیۃ ھلال نہ ھوئی تو بحالت صحو عید منانا جائز نہیں، اور بحالت علت عید منانا جائز ہے.

(7)ساتواں: اگر کسی جگہ حاکم وقت یا اسکے نائب (جماعت علماء یا عالم ثقۃ فی القریۃ) نے رؤیۃ ھلال کے باب میں فاسق کی شہادت کا غلبہ ظن کے بعد اعتبار کرتے ہوئے حکم دیدیا، تو نتیجہ ان سب کیلئے قابل تسلیم سمجھاجائیگا، لیکن انکوایسا نہیں کرناچاہئے تھا.

(8) آٹھواں: (اختلاف مطالع صوم وفطر میں بشرطیکہ دوسری جگہ ثبوت رؤیۃ بطریق موجب ہو معتبر نہیں ھوگا.

## پر دغه اتو مسئلو باندې:

دغه (۴۲جید علماء) متفق دی. او په دغو مسئلو کې زموږ مقصد اخیرنې مسئله ده، سې اختلاف د مطالعومعتبر ندہ، په هرځای کې سې ولیدله سی، او نورو

خلکو ته خبر په داسې طریقه ورسیږي، سې د هغو غالب ګمان سی، سې دغو خلکو میاشت لیدلي ده بس دغه نالیده خلک به هم روزه او اختر جوړوی.

**(۵)پوښتنه:** ډیر خلک دا خبره کوی، وایې موږ سې په هر هیواد کې اوسیږو موږ د هغه هیواد اطاعت کوو، د هغه تابع یو، پخپل اختیار نه روزه نیولي سو، او نه اختر جوړولي سو. ولی؟ که د هیواد روزه وه، زموږ به هم روزه وی او که د هیواد اختر وو زموږ به هم اختر وی، ایا دا خبره صحیح ده، او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب،** دغه خبره غلطه ده هیڅ اصل نه لری، پر دغه خبره موږ د ټولي نړی‌و علماوو ته چیلنج ورکوو، که یو چا داسې حدیث شریف او یا فقهی جزئیه پیدا کړه، سې هر قوم به د خپل هیواد علی الاطلاق تابع وی، لکه څنګه سې په پوښتنه کې ذکر دی، بلکې د غو خلکو له داسې عباراتو لکه د متفقي فیصلي په دریمه مسئله کې سې ذکر دی اشتباه سوي دي.

**هغه عبارت دادی:** اور اسکا اعلان ریڈیو میں حاکم مجاز کے طرف سے ہو تو اسکے حدود ولایت میں سب کو اس پر عمل کرنالازم ہوگا.

په دغو عباراتو کې علماء کرامو دري (۳) شیان ملحوظ کړي دی.

**(۱)اول:** اختلاف د مطالعو ته یه اعتبار نده ورکړي، ځکه و ټول پاکستان ته یه دغه دید کافي بللي ده.

(۲)**دوهم**: د پاکستان پاچا یه خلیفة الله بللي ده.

(۳)**دریم**: قاضي یا د هلال کمیټۍ چیرمین یه د خلیفه نائب بللي ده. د قاضي تر خپل حدود ولایت پورې د ده امر پر خلکو واجب ده او دغه رنګه یې نهی "منع" په دي شرط سره، سې مأمور به، د امر او د نهی په امتثال سره نه ګناهګاریږي.

نو ترجمه د عبارت داده: که خلکو میاشت نه پخپله ولیدله او نه له بله ځایه په طریقه موجب سره خبر سوو، پدغه وخت کې قاضي د لیدلو اعلان وکړ، ټول پاکستا نیان به روزه ورسره نیسي. اوکه یه د نه لیدلو اعلان وکړ سې موږ میاشت نه ده لیدلي، په صورة مذکور کې خلک په نیولو، او نه نیولو کې اختیار مند دی، ځکه دوي نه لیدلي ده، او نه له بل ځاي خبر سوي دی، او قاضي هم نه امر کړي ده، او نه یه منع کړي ده، ځکه داسې اعلان یه ندي کړي، سې مه یه نیسئ، بلکې داسې اعلان یه کړیده، سې موږ نده لیدلي. او که یو چا پخپله ولیده او یا له بله ځایه خبر سو، په شرعي طریقي سره په دي وخت کې د خپل قاضي و اعلان ته هیڅ ضرورة نسته، بلکې په صورة مذکوره کې که د نه نیولو اعلان وکړی، سې مه یه نیسئ، اطاعت یې واجب نه ده، بلکې اطاعت یې په دغه وخت کې ناروا ده، ځکه دغه خلک خبر دی، سې میاشت لیدله سوي ده.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وایې: (لاطاعة للمخلوق في معصیة الخالق) لهذا خلک په دغه عبارت اشتباه سوي دی، داګمان یه کړیده ده، سې د قاضي بې اعلانه

نه روزه نیولي سو مطلقاً، او نه روزه ختمولي سو مطلقاً، داخبره یه بي بنیاده ده، هیڅ اصل او دلیل په مذکوره مسئله کې پر دغه خبره څوک نه لري.

(٦) **پوښتنه:** مخته دا ثابته سوه سې په موجبه طریقه باندې، یعني په شرعي طریقي سې یو څوک خبر سې د میاشتې پر ثبوت باندې، پر هغو روزه نیول واجب ده، کڅه هم قاضي اعلان نه یې کړي ، او هغه لیدل هم که په هر ځاي کې وی، اوس پوښتنه داده سې دغه طریقه موجبه او یا شرعي طریقه کومه طریقه ده.؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب:** د میاشتې د ثبوت لپاره تقریباً اووه (٧) طریقي دي.

**(١)اوله طریقه:** عام لیدل دی: میاشته را وخیږي ټول خلک یه و وینی، په دي صورة کې د قاضي او د بل عالم قضاء او اعلان ته ضرورة نسته.

**(٢)دوهمه طریقه:** که په اسمان کې علت وو، عام لیدل نسواي کیداي، یو دیندار کس، هغه که نر وي او که ښځه، حر وي او که غلام وی، د رمضان شریف د میاشتې لپاره به قاضي او بل عالم ته ګواهي اداء کړي، او د اختر د میاشتې لپاره به دوه (٢) کسان ګواهي اداء کړي، هغه به بیا اعلان وکړي.

**(٣)دریمه طریقه:** اصلي ګواهان د یو عذر په وجه په خپله، د ګواهي ځاي

ته نسي حاضر يدي، نو پر خپلې ګواهي باندې به ګواهان ونيسي. غوره داده سې هر يو پر خپلې ګواهي دوه ګواهان "شاهدان" ونېسی، او پر دواړو دوه ګواهان هم صحيح دی، ځکه دواړه پر هر يوه ګواهان دی، نو هغه د شاهدانو شاهدان به مجلس د قاضي يا بل عالم ته حاضر سی، د ګواهانو پر ګواهي باندې به ګواه سی.

(۴)**څلورمه طريقه**: دوه دېنداره کسان د قاضي، يا د يو عالم د قضاء په مجلس کې ناست وی، دغه قاضي يا عالم ته ګواهان راسی، او هغه د راغليو ګواهانو ګواهي قبوله کړی، سې کله دغه دېنداره کسان بل ځاي ته ولاړ سې، هلته د قاضي يا د عالم د قضاء مجلس ته ورسی، د قاضي په حکم ګواهي ووايې، سې موږ د فلانې قاضي يا د عالم په مجلس کې ناست وو، هغه داسې فيصله وکړه، موږ يه پر فيصله ګواهان يو.

(۵)**پنځمه طريقه**: قاضي د ګواهانو پر ګواهي باندې فيصله وکړی، او دوه ۲ کسان را وغواړی، د هغو په مخ کې دغه مکتوب ووايي، او مهر پر ولګوی، او بيا دغه دوه کسان د بل ځاي قاضي يا عالم ته ور وليږی.

(٦)**شپږمه طريقه**: يو ځاي ته له بله ځايه متعدد جماعتونه راسی، هر يو وايې، سې په فلانې ځاي کې د خلکو روزه، يا اختر وو، ځکه هغو مياشت ليدلې وه، او دغو اوريدونکو ته غالب ګمان "ظن" حاصل سي پر روزه يا اختر باندې، له د غه ګمان وروسته هم روزه نيول پر لازم، او هم اختر جوړول پر لازم ده، مګر

صرف افواه او بې بنیاده اوازې هیڅ اعتبار نلري.

(۷)**اوومه طریقه**: په صحراء کې خلک اوسي، هلته له دوي سره نه قاضي وي، او نه یه آلات کار کوي، یعني ټیلیفون وغیره کار نه کوي. د بازار خوا ته ټکان وسي، یا د رسان مرمۍ پورته سي، یا پټاکې غوځاري کړي، د دغو صحرائي خلکو دا غالب ګمان سي، سې میاشت لیدل سوي ده، بس پر دوي لازمه ده روزه به نیسي.

**په دغه اوو (۷) شیانو کې**: په هر یوه إثبات د میاشتې کیږي، یعني، (۱) رؤیة (۲) شهادت (۳) شهادت علی الشهادت (۴) شهادت علی قضاء القاضي (۵) کتاب القاضي الی القاضي (٦) خبر مستفیض (۷) رؤیة قرائن وشواهد. المنحة الخالق علی بحر الرائق، (ص۲۷۶ـ ج۲). در المختار علی رد المحتار (ص۹۹ـ ج۲) وکذا فیه (ص۱۰۲،۱۰۰ـ ج۲) وغیره من الکتب المعتبرة.

(۷)**پوښتنه**: دغه شیان خو ټول و قاضي ته دی، یا عالم ثقه ته دی، یعني په دغو طریقو کې که په یوه طریقه باندې میاشت ثابته وي، بیا به خلک عمل په کوي، په خپل سر خلک څنګه عمل پر يې وکړي؟

**ځواب: اول**: خو موږ دا نه منو سې دغه طریقې ټولې و قاضي ته دی، او یا عالم ثقة ته دی، ځکه مقصد په رمضان کې علم راوستل دې پر میاشت باندې، هر چا سې په څنګه طریقه علم وربانديې حاصل کړ پر هغه باندې عمل کول لازم

ده، و قضاء ته ضرورت نسته په روزه کې، ځکه روزه له عباداتو څخه ده، صرف خبر ورته کافي ده، شهادت لازمې نه ده. لکه يو څوک سې په خپله مياشت ووينې پر ده لازمه ده، سې عمل وربانديې وکړی، که څه هم قاضي اعلان نه وې کړي. او يا د صحراء خلک سې د ښار څخه د رسان مرمي و غيره علامات ووينې دوی به عمل په کوی. که څه هم د قاضي په اعلان نه يې خبر سوی.

**دوهم ځواب:** که داخبره ومنو سې قاضي ته دی، يا عالم ثقه ته دی، دغه قاضي او عالم ثقه بيرته خلک په اخبار بانديې خبروی، دا اخبار آلات واسباب د پخواه او د اوس د زماني سره بدل دی، په پخواه زمانه کې يوه قاضي يا عالم ټول خلک نه بلکې ټول هيواد نسواي خبرولي، ځکه خو يا به يه قاصد پر آس، قچر، وغيره بانديې وليږي، او يا به يې د منار پر سر بانديې اور بل کړو، او يا به يه ډول وواهه، په دغو ټولو طريقو بانديې تر محدودو علاقو پورې خبر رسيږي، نو ځکه به د هر کلي خلک وخپل قاضي انتظار وو، خو خير د غو خلکو ته دقاضي او يا دعالم له جانبه صرف خبر کافي وه، او هم به د دغي علاقي مستقل قاضي وو، ځکه دغه قاضي تر دغو حدودو بالا، تقريبا خپل اعلان هم نسواي رسولاي. او په اوس زمانه کې آلات واسباب داسې دی، سې ټول هيواد نه، بلکې ټوله دنيا خبرولي سي، د يوه قاضي په اعلان بانديې او په دغه اخبار کې د قريب او بعيد هيڅ فرق نوی، او بعيد ته رسول هيڅ مشکل نوی، ځکه خبرول يا په راديو، او يا تلويزون او يا ټيليفون بانديې وی، پر د غو شيانو د قريب او بعيد هيڅ فرق نسته. هر انسان د خپل هيواد دقاضي په اعلان او

د بل هیواد د قاضي په اعلان علی السویة خبریږي، ټوله دنیا داسې سویه لکه یو کلی، او د روژې په باب کې پر هر انسان د خپل قاضي او د بل قاضي په حکم کې هیڅ فرق نسته، د دواړو پر اعلان پر انسان لازمیږي، ځکه مخته په کرا تو مرا تو سره ذکر سو، سې یو اختلاف د مطالعو اعتبار نه لری، او بل روژه تر قاضي پورې تعلق نه لري، لهذا په اوس وخت کې د یو شرعي قاضي اعلان ټولي اسلامي نړۍ ته کافي ده، او هم یه اعلان ټولي اسلامي نړۍ ته علي السویة رسیږي، یعني کمیټه او قاضي دې، هر هیواد ولري، په هر هیواد کې سې په شرعي طریقې ثابته سوه، هغه به اعلان وکړی، هغه نور هیوادونه به په هغه اعلان کفایت کوی. او هغه خبره سې هر څوک د خپل قاضي تابع ده، هغه بیله خبره ده، تر روژې پورې هیڅ تعلق نه لري، د هغه خبرې تشریح موږ مخته کړې ده، دوهم ځل یه نه ذکر کوو، مګر په اوس وخت کې د یو هیواد د اختر لمونځ، بلکې په هیواد کې داخل د یوه ولایت د اختر لمونځ پر تلویزیون باندې نشریږي، او دغه رنګه لایف "مخامخ" ویډیو ګاني یې شروع وی، د نورو هیوادونو روژه وی. او اختلاف مطالع معتبر هم نه بولي، تر دې بدتره داده سې د پاکستان په سرحدا تو کې، لکه: د پاکستان چمن، او د افغانستان د ویش بازار، سې په خپل منځ کې خالې یوه دروازه ده، نیم کیلو میتر مسافه هم نسته، د افغانستان طرف ته اختر وی، عیدګاوې ټول خلک په سترګو وینې بلکې ډیر خلک هلته د عیدګاه په شاه وخواه کې ګرځي، مګر دپاکستان طرف ته روژه وی، یعني دپاکستانیانو روژه وی، که څه هم په ویش کې وی. او په اول د رمضان کې د افغانانو روژه وی، او د پاکستانیانو نه یې روژه، د الله ﷻ په احکامو کې یه

سرحد جوړ کړي وی، احکام يې پر سرحد داسې ويشلي وی، لکه د دوي حکومت، بلکې تر دي هم بدتره داده، سې د الله ﷻ احکام يې پر خلکو داسې تقسيم کړي وی، لکه: خپل ملکي احکام، يعني د افغانانو د اختر په ورځ که پاکستانيان په ويش او بولدک کې کرځی هم، روزه به يه وی، ځکه دوي دخپل هيواد تابع ځان بولي، او دغه رنګه په روزه کې. لهذا پر دغه عقيده او مسئله باندې هيڅوک له هيڅ کتابه هيڅ دليل نسي پيش کولاي، کڅه هم هغه څوک وی، سې اختلاف د مطالعو معتبر بولي. ځکه دغه خلک سره ګډ، او خلط دی، تر منځ هيڅ مسافه نه لري، الله ﷻ دی وکړی، سې زموږ په دغه ګډ وډ، او ادنیٰ تحقيق باندې د خلکو د زړه سترګي خلاصي سی، په اتحاد او اتفاق دغه مسلمانان يوه روزه، او يو اختر جوړ کړی.

نعم لو استفاض الخبر في البلدة الاخرى لزمهم على الصحيح من المذهب (قوله نعم الخ) في الذخيرة قال شمس الائمة الحلواني الصحيح من مذهب اصحابنا ان الخبر اذا استفاض وتحقق فيما بين اهل بلدة الاخرى يلزمهم حكم هذه البلدة، آه. ومثله في الشرنبلالية عن المغني قلت ووجه الاستدراک ان هذه الاستفاضة ليس فيها شهادة على قضاء قاض، ولا على شهادة لكن لما كانت بمنزلة الخبر المتواتر وقد ثبت بها ان اهل تلک البلدة صاموا يوم كذا لزم العمل بها لان البلدة لاتخلو عن حاكم شرعي عادة فلا بد من ان يكون صومهم مبنيا على حكم حاكمهم الشرعي، فكانت تلک الاستفاضة بمعنى نقل الحكم المذكور، وهي اقوى من الشهادة بان اهل تلک البلدة رأوا الهلال، وصاموا

لانها لا تفيد اليقين فلذا لم تقبل إلا إذا كانت على الحكم او على شهادة معتبرة والى فهي مجرد اخبار بخلاف الاستفاضة فانها تفيد اليقين فلا ينافي ماقبله هذا ماظهر لي، تأمل. در المختار على رد المحتار، (ج ٢ـص ١٠٢)

ولو كانوا ببلدة لاحاكم فيهما صاموا بقول ثقة وافطروا باخبار عدلين (قوله ببلدة آه) اي او قرية قال في السراج ولو تفرد واحد برؤية في قرية ليس فيها وال ولم يات مصرا يشهد وهو ثقة يصومون بقوله آه. قلت والظاهر انه يلزم اهل القرى الصوم بسماع المدافع او رؤية القناديل من المصر لانه علامة ظاهرة تفيد غلبة الظن وغلبةالظن حجة موجبة للعمل، كما صرحوا به واحتمال كون ذلك لغير رمضان بعيد اذ لا يفعل مثل ذلك عادة في ليلة الشك الا لثبوت رمضان (قوله صاموا بقول ثقة) او افتراضا لقوا المصنف في شرحه وعليهم ان يصوموا بقوله اذا كان عدلا آه. درالمختار على ردالمحتار (ص٩٩ـج٢).

واذا ثبت رؤية الهلال في بلدة لزم سائر المسلمين في كل اقطار الدنيا وعليه الفتوى لعموم الخطاب في الحديث الشريف (صوموا الرؤيته) وبخاصة في عصرنا الحاضر حيث اصبحت وسائل الاتصال ونقل الاخبار سهلة وسريعة بحيث ينتشر الخبر الى ارجاء المعمورة في زمن يسير ولو رؤى في المشرق ليلة الجمعة وفي المغرب ليلة السبت وجب على اهل المغرب العمل بما رآه اهل المشرق هذا هو المعتمد عند فقهاء الاحناف والحنابلة والمالكية وفي قول الجمهور هذا فيه ما فيه من اظهار وحدة المسلمين في سائر البلاد قال تعالى ( إن هذه امتكم امة واحدة وانا ربكم فاعبدون) الفقه الحنفي (ص٤٠٢ـج١)

(۸)**پوښتنه**: بعضې خلک دا إعتراض کوی، سې د احنافو په ټولو کتابونو کې نه دې ذکر، سې اختلاف د مطالعو نده معتبر. بلکې ځینې کتابونه لکه بدائع الصنائع، تبیین الحقائق للزیلعي، او ألإختیار شرح المختار وایې: سې اختلاف د مطالعو په قرب د مسافۍ کې نده معتبر، او په بعد "لریوالي" د مسافۍ کې معتبر ده، نو بیا په کوم دلیل هغه قول سې اختلاف د مطالعو معتبر نه بولي هغه راجح ده، په هغه به عمل کول کیږي، ولي په هغه قول نه کول کیږي سې اختلاف د مطالعو معتبر بولي؟

**الجواب بإسم ملهم الصدق والصواب**: په فقه کې به ډیري لږ مسئلي داسې وی، سې په هغه کې به اختلاف د اقوالو نه وی، لله الحمد زموږ د مذهب علماء کرامو هغه قولونه ټول را معلوم کړي دی، سې فلان راجح ده، او فلان مرجوح ده. په کوم ځاي کې سې قول راجح موجود وی، بیا په مرجوح باندې عمل کول نا جائز ده. لهذا هغه قول، سې اختلاف د مطالعو اعتبار نلري، هغه راجح ده، ځکه یو خو د صاحب مذهب قول ده، او تبیین الحقائق وغیره دا د صاحب مذهب مقلدین دی، د صاحب مذهب په مقابل کې د دوي خبره هیڅ اهمیت نلري. او بل اصحاب الترجیح و دغه قول ته (مفتی به) ویلي دی. او بل د مذکوره کتابونو هیڅ ټکر د صاحب المذهب سره نسته، ځکه دوي سې وایې اختلاف د مطالعو معتبر ده په بعد د مسافۍ کې، دغه د دوي خبره محمول ده پر هغه بعد باندې، سې هغه پوره ورځ یا پوره شپه فرق لري، په دومره بعد "لري والي" کې باید عقلا اختلاف د مطالعو معتبر سي، کڅه هم نقلا صحت نلري،

يعني په يوځاي کې ورځ شروع سي په هغه بل ځاي کې شپه شروع سي، بيا په هغه اول ځاي کې شپه شروع سي په هغه دوهم کې ورځ شروع سی، دواړه ځايه نه په ورځ کې سره جمع کيږي او نه په شپه کې سره جمع کيږي، دلته د عقل تقاضا داده سې اختلاف د مطالع دې معتبر سی، او د دغو علماء کرامو قول هم پر دغه بعد "لري والي" محمول ده. لکه څنګه سې دغه توجيه حضرت مولانا محمدانور شاه کشميري رحمه الله کړي ده، مګر د فقير او ناڅيز بنده د عقل تقاضا داده سې په دغه دوو ځايو کې عقلا هم نده معتبر، لکه څنګه سې نقلا نده معتبر ،يعني د صاحب المذهب قول سې اختلاف د مطالع اعتبار نلري مطلقا، که قريب وی، او که بعيد وی، او بعيد هم سې هرڅومره بعيد وی، عقلا او نقلا صحيح ده، ځکه که موږ د ځمکې په کره باندې قائل سو، نو بيا خو به دا ضرور منو، سې ورځ او شپه په دنيا کې تر قيامته نه ختميږي، دواړه سره روان دی، د کري په هر طرف سې لمر وی پر هغه طرف ورځ وی، او پر هغه بل طرف شپه وی، لمر سې څنګه روان وی ورځ ورسره روانه وی، او شپه ځيني روانه وی، دقيقه پر دقيقه بلکې ثانيه پر ثانيه د کري پر مخ باندې لمر پر يوځاي ورخيږي او پر يوځاي لويږي، نو ورځ هم په دغه څير روانه وی، ثانيه پر ثانيه يوځاي ور داخليږي، يعني شروع کيږي، او پر بل ځاي ختم کيږي، او شپه هم دغه شان ورسره روانه وی. مثلا: څلور هيوادونه دي، په خپل منځ کې (۴)څلور څلورساعته فرق سره لری، په اول هيواد کې ورځ شروع سوه، څلور ساعته وروسته په دوهم هيواد کې ورځ شروع سوه، د اول په حساب څلور ساعته وروسته، او د دوهم هيواد په حساب اته (۸) ساعته وروسته، په دريم هيواد کې

ورځ شروع سوه د اول په حساب دوولس ساعته (۱۲)، د دوهم په حساب اته ساعته، د درېیم په حساب څلور ساعته وروسته، په څلورم هیواد کې ورځ شروع سوه، اوس د اول هیواد او څلورم هیواد په منځ کې دونه فاصله راغله، سې پوره ورځ او شپه فرق سره لري، په اول هیواد کې ورځ ختمه سوه شپه شروع سوه، او په څلورم کې شپه ختمه سوه ورځ شروع سوه، کوم وخت سې پر څلورم هیواد شپه شروع سي، پر اول هیواد بېرته ورځ شروع سي، اوس خپل مقصد ته راګرځم: د اول هیواد کڅه هم له څلورم هیواد سره ورځ نه وه مشترکه، له دوهم او درېیم هیواد سره خو یه مشترکه وه، د دوهم او درېیم بیا له څلورم هیواد سره مشترکه وه، دغه رنګه شپه سې د اول هیواد له څلورم سره نه وه مشترکه، له دوهم او درېیم سره خو یې مشترکه وه. د دوهم او درېیم بیا له څلورم سره مشترکه وه، دغه رنګه دا سلسله روانه کړه پنځم، هیواد، شپږم، او اووم هیواد ته هم څلور څلور ساعته وروسته. د دوهم هیواد شپه او ورځ له پنځم سره نه شریک کیږي، مثلا: د درېیم هیواد له شپږم سره، د څلورم هیواد دا له اووم هیواد سره نه شریک کیږي. مثلا: کوم وخت سې په څلورم هیواد کې میاشت ولیدل سی، دغه میاشت د اول هیواد لپاره هم بلل کیږي، ځکه د څلورم هیواد شپه خو د درېیم هیواد او دوهم هیواد سره یوه وه، د درېیم او دوهم هیواد شپه بیا له اول سره یوه وه، پر دوهم او درېیم هیواد د څلورم له وجې لازمیږي، پر اول باندې بیا د دوهم او درېیم له وجې لازمیږي. ځکه شپه او ورځ دواړه روان دی، دقیقه په دقیقه، ثانیه په ثانیه بدلیږي، ختمیږي نه، لهذا هغه مذکوره کتابونه د اول او څلورم نسبت سره اخلي، د مینځ وسائطو ته نظر

نکوی، خو خیر په هر تقدیر دغه عقلي خبري دي، نقلي نه دی . زموږ په شریعت کې سې نقل موجود وی، په عقل کار نسو کولای.

وأن الحكم والفتايا بالقول المرجوح جهل وخرق للإجماع آه. قوله (وان الحكم والفتايا آه) وكذا العمل به لنفسه ومذهب الحنفية المنع عن المرجوح حتى لنفسه لكون المرجوح صار منسوخا آه. ردالمختار على درالمحتار (ص٥٥ـ ج١) فالحاصل ان عند اكثر الائمة والعلماء لا اعتبار لاختلاف المطالع وهو الصواب، واما ما قال الزيلعي في شرح الكنز أن الأشبه انه (اختلاف المطالع) يعتبر فلعله ليس قولا مخالفا لظاهر الرواية بل هو تفصيل حسن لقول ائمتنا المنقول عنهم اجماعا ومراده عندنا (والله اعلم) البلاد النائية التي يلزم بقبول الشهادة فيها ان يكون الشهر انقص من تسع وعشرين يوما في بلد آخر، واشار اليه محمدا نورشاه الكشميري ولابد من تسليم قول الزيلعي والا لزم وقوع العيد يوم السابع والعشرين والثامن والعشرين او الحادي والثلاثون والثاني والثلاثون. معارف السنن (٣٣٧ـ ج٢)، احسن الفتاوی (ص٥٠٥ـ ج٤)، فتح الملهم (ص١١٣ـ ج٣).

يوه يادونه باید وکړم: "د فتح الملهم کتاب حواله مې له بل چانه را اخیستې ده، په خپله مې دغه ځای نه ده کتلي".

(٩)**پوښتنه:** بعضي خلک وایي سې ځیني اهل علم د دغو احادیثو مبارکانو (الصوم یوم تصومون والفطر یوم تفطرون والأضحی یوم تضحون). (الفطر یوم یفطر الناس والاضحی یوم تضحی الناس) ژباړه داسې کوی، سې روزه هم له خلکو

سره کوئ او اختر هم له خلکو سره کوئ، یعني: سې د اکثرو خلکو روزه يي، نو ته هم روزه نیسه، او سې د اکثرو خلکو اختر يي، نو ته هم اختر جوړوه، لهذا موږ ځانونه ځکه د هیواد تابع بولو؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب:** دغه حدیث مبارک د دې دلیل نه دی، سې هر هیواد دې خپل ځانته روزه او اختر جوړوی، او هر کس د خپل هیواد تابع ده. بلکې هر حدیث پر دې باندې دلالت کوی، سې د نورو خلکو روزه وی، یعني د نورو هیوادونو روزه وی، نو تاسې هم روزه ورسره ونیسئ، او سې د هغو اختر وې تاسې هم اختر ورسره جوړ کړي. ځکه یو خو دغه خطاب په هیواد کې هر کس ته راجع ده، او بل ټول هیوادونه په اوس وخت کې د وسائلو په وجه داسې دی لکه یو "واحد" هیواد.

علامه الخطابي په معالم السنن کې وایې: د حدیث شریف ژباړه داده: په هر هغه شيء کې، سې لار د اجتهاد پکښې وی، په هغه کې که یو څوک خطاء سي، الله ﷻ په نه نیسي، خطاء یې معاف ده. مثلا یو قوم په دیرسم (۳۰) د رمضان میاشت نه ولیده د حساب له وجې یه دیرس ۳۰ روزي پوره کړي، بیا خبر سوو، سې میاشت خو د نوېست (۲۹) وه خلکو لیدلي وه، پر دغه خلکو نه دا ګناه ستته سې د اختر په ورځ یې روزه نیولي وه او نه بیا اعاده وربانډې ستته، دغه رنګه خلک که په لوي اختر کې خطاء سوو، عرفات یه د لسم۱۰ په ورځ جوړ کړ، ځکه دوي د نهم(۹) ورځ بلله، وروسته په خپله خطاء خبر سوو، نو د دي خلکو حج صحیح ده، او دغه رنګه د دوي له حسابه ۱۲ دوولسم د ذی الحجي وو، اختري یه حلال

کړ، وروسته خبر سوو، سې دا خو د ١٣ دیارلسم ورځ وه، ځکه تر دوي مخته یو ورځ بل چالیدلي وه، د دوي اختریان صحیح دي، اعاده نه غواړي.

قال الخطابي في معالم السنن: معنى الحديث ان الخطاء موضع عن الناس فيما كان سبيل الإجتهاد فلو ان قوما اجتهدوا فلم يروا الهلال الا بعد ثلاثين فلم يفطروا حتى استوفوا العدد ثم ثبت عندهم ان الشهر كان تسعا وعشرين فان صومهم وفطرهم ماض فلا شيء عليهم اعادته ويجزيهم اضحاهم كذلك وإنما هذا تخفيف من الله سبحانه ورفق بعباده ولو كلفوا اذا اخطأوا العدد ان يعيدوا لم يأمنوا ان يخطئوا ثانيا ولا ان يسلموا من الخطاء ثالثا و رابعا فان ما كان سبيله الاجتهاد كان خطأ غير مامون فيه آه. فاذا كان الحق سبحانه وتعالى جعل الصوم انما هو مع الناس ولو كانوا مخطئيين في نفس الامر فكيف وهم مصيبون محقون بالرؤية المحققة ثم الحديث إنما اخبر به الشارع في الوقت الذي لم تمكن فيه وسائل وصول خبر الهلال موجودة فكان اذا رؤى الهلال بالمغرب مثلا يوم تسعة وعشرين واصبحوا صياما يوم الثلاثين ولم يره اهل المشرق الايوم ثلاثين فان الحرج عنهم مرفوع اذ لا يكلف الله نفسا الا وسعها ولان خبر اهل المغرب قد لايصلهم الا بعد سنة فلم يكلفهم الله تعالى بالاعادة اما بعد ظهور وسائل الخبر في عين اللحظة التي يثبت فيها الهلال عند الامام والقاضي بالحجاز ومصر والشام والافغانستان وغيرها فان الحكم خلاف ذلك لان الدنيا بسبب تلك الوسائل صارت كانها بلدة واحدة فصار لها حكم اهل البلدة الواحدة يعم جميعهم ما يثبت عند قاضيهم.

**(۱۰)پوښتنه:** بعض خلک وايې سې په شريعت کې ۲ دوه حسابه دي، يو ديد ده، او بل حساب ده، پاکستان يې له ديده نيسي او له ديده يه خوري، او افغانستان، وغيره، يي له حسابه نيسي او له حسابه يې خوري، نو ځکه يې اکثره وخت پر يوه ځاي روزه او اختر نه جوړيږي، ايا دغه خبر صحيح ده، او که نه.؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب:** دغه خبره بلکل سراسر غلطه ده، هيچا ته داسې اختيار نسته. بلکې هر مسلمان په دي مکلف ده، سې د مياشتې پر وجود علم راولي، د علم راوستلو شريعت يوه طريقه بيان کړي ده، هغه داده: سې د شعبان د ديرسم ۳۰ په شپه به مياشتې ته ګوري، که اسمان صاف وو، او مياشت يه ونه ليدله، سهار روزه نسته، او که پر اسمان علت وو، مياشت يه ونه ليدله، سهار د شک روزه ده. په اول صورت کې سې مياشت نه ويني، او اسمان هم صاف وی، نو د شعبان ديرس به پوره کړي، په يو ديرسم (۳۱) د شبان به روزه نه نيسي کڅه هم مياشت يې نه وې ليدلي. ځکه په شريعت کې د يو ديرس شپو مياشته نسته، دا طريقه د ټولي دنيا لپاره ده، داسې کيداي نسي، سې پاکستان يه له ديده هم نيسي او له ديده يه هم خوري. ځکه د دي دا معنی سوه، سې د شعبان کڅه هم ديرس پوره وی او دوي د رمضان مياشت نه وې ليدلي، نو روزه به نه نيسي، او افغانان به بيا، مثلا: که د ديرسم د شعبان په شپه مياشت ويني، هم روزه نه نيسي، ځکه دوي ديرس د شعبان پوره کوی، او دا غلطه ده هيڅ اصل په دين کې نلري، بلکې د هر چا لپاره اول ديد، او بيا حساب ده.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي (صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليكم فاكملوا عدة شعبان ثلاثين) د روزي تعلق اولاً بالذات د مياشتې تر ليدلو پورې نده،د مياشتې تر وجود پورې معلق ده،، د مياشت د وجود ثبوت شريعت تر ليدلو پورې موقوف کړي ده، که د مياشتې تر ليدلو پورې معلق سي، اولاً بالذات، نو پر ړانده، او قيدي کس باندې بايد نسي فرض، ځکه هغوي يه نسي ليدلي .او دغه رنګه که پر اسمان سخته وريځ وى، او خلک يې د شعبان تر پنځه ديرس پورې نه ويني، نو بايد روزه نه ونيسي، ځکه مياشت يې نده ليدلي.

الحكم في الصوم والافطار ليس معلقا بالرؤية لذاتها بل هو معلق بظهور الهلال و وجوده والرؤية انما علق الشارع بها الحكم لانها طريق إلى معرفته والتحقق من وجوده يستوى فيه العام، والخاص، والعالم، والجاهل، ولولا ذلک لما كان لها ذكر ولما دخلت في الحكم اصلاً لان الحكم انما هو معلق بالهلال و وجوده في السمآء فكيف يعلق الحكم على وجودها بالنسبة لاهل كل بلد ويشترط في الاعتراف بها ان يراها اهل كل قطر مع تحققها في بعض الاقطار بل ذلک من الخطاء الواضح الذي يوقع فيه عدم التأمل والتدبر والنظر الي الاشياء بتفهم وتبصر ويدل على ذلک امور الامر.

**ألامر الاول:** ان الله تعالى علق الحكم بالصيام والافطار على وجود الهلال مع العلم به لا من طريق الرؤية الموجودة من كل فرد بل مجرد الرؤية فقال تعالى (فمن شهد منكم الشهر فليصمه) وقدمنا بالادلة القاطعة ان المراد

بالشهود العلم او الحضور الراجع الى معنى العلم ايضاً وان الرؤية غير لازمة ولو كانت هي مناط الحكم لقال فمن رأى منكم الشهر فليصمه لكنه لم يقل ذلك فدل على ان الرؤية غير شرط لازم لكل احد.

**الامر الثاني:** ان السنة الثابتة عرفنا ان النبي صلى الله عليه وسلم صام رمضانات متعددة هو و اصحابه وامته الحاضرة في وقته بدون ان يراه، لا هو، ولا اصحابه، وانما رآه مرة عبدالله بن عمر رضي الله عنه وحده مرة اخرى ركب ولو كان مناط الحكم الرؤية لما صام حتى يراه وهو ويراه الناس كلهم فلما لم يفعل دل على انها غير لازمة.

**الامر الثالث:** اجماع الامة على صيامهم بدون رؤية كل احد واكتفاء القطر العظيم المشتمل على الملايين عدلين او جماعة قليلة.

**الامر الرابع:** ان النبي صلى الله عليه وسلم قال (فان غم عليكم فاكملوا العدة ثلاثين) فنحن اذا اكملنا ثلاثين صمنا وافطرنا ولاعبرة حينئذ برؤية الهلال او عدمها لان المقصود هو تحقق الهلال وقد تحقق باكمال الثلاثين لان الشهر لا يزيد على الثلاثين فسقط حكم الرؤية واعتبارها.

**ستره ګیله او شکوه:** د پاکستان له معززو علماء کرامو څخه کوو، سې په موجوده دور کې د اکثره افغانانو استادان هم دی، الله جل جلاله دې جزاء خیر

ورکړي. ګیله داده سې دغه علماء کرام د پاکستان د انتشار د ختمولو په وجه اتفاقاً اختلاف د مطالع په هیواد کې داخل معتبر نه بولي، فتوا وې یه ورته کړي دی، سې په ټول هیواد کې یو رؤیت او یو اعلان کافي ده، ځکه (مفتی به) قول داده سې اختلاف د مطالع اعتبار نلري، ددي لپاره سې په هیواد کې انتشار او بې اتفاقي رانسي، او د عالم اسلام د انتشار د ختمولو لپاره دغه فتوی نه ورکوی، سې اختلاف د مطالع اعتبار نه لري، د یوه هیواد رؤیة د بل هیواد لپاره کافي ده، د هیواد انتشار او تفرقه نسي زغملي، او د عالم اسلام انتشار او تفرقه زغملي سي. د تعجب خبره داده سې په سرحداتو کې دوه ۲ کلي په خپل مینځ دوه کلو میتره فاصله نلري، هغه هم په جنوب او شمال کې، د یوه کلي رؤیت او علم د بل کلي لپاره کفایت نه کوی، او په هیواد کې داخل دوه زره (۲۰۰۰) کلو میتره فاصله هغه هم په مشرق او په مغرب باندې کفایت کوی، یو دید او رؤیة ټول هیواد لپاره کفایت کوی. دغه شرعی مسئله یه داسې کړي ده لکه د سیاسې علماوو سیاسې مسئله، د پاکستان سیاسې علماوو د هیواد حدود معلوم کړي دي، حکومت سې هره فیصله او پریکړه وکړي، هغه تر خپلو حدودو پورې محدوده ده، د دغه حاکم امر نه تر حدودو وځي، او نه په هیواد کې یو څوک ځېني مستثناء کیداي سي. شرعي علماء کرامو د روزي او د اختر فیصله او حکم هم دغسې کړي ده، دغه حکم نه تر حدودو تیریدلي سي، او نه په هیواد کې داخل څوک ځېني وتلي سي. لهذا دا د احکامو لپاره سرحد او باډر سو، سرحد او باډر په شریعت کې د احکامو لپاره ممنوع او نا جائز دی.

نقول هذا العلماء الكرام كمانت مخالفين مع الذين يقولون بعدم اعتبار خلاف المطالع واتحاد الاقطار في الصيام كذلک کانت مخالفين للقائلين باعتبار اختلاف المطالع وعدم اتحاد الاقطار في الصيام. لان القائل بذلک من الحنفية يقولون به في البلاد البعيدة جدا، وهذا العلماء الباكستانيين يفعلون ذلک بالبلاد القريبة المجاورة لهم کالافغانستان والايران بل هم يسلکون في ذلک المسلک الاختلاف السياسي ويعتبرون القرب والبعد باختلاف الحکومت اسما وان اتحدت في الواقع ونفس الامر بل يعملون علیٰ رؤية بلد تبعد عن البلد التي لايعملون برؤيتها ألوف المرات لاتفاق البعيدة في اسم الحکومة واختلاف القريبة فيه. کاهل الجمن يعملون برؤية اهل اللاهور والکراتشي ولايعملون برؤية البولدک وذلک مما يضحک الثکلي ويستغرب منه الصبيان والمجانين ويخطر علی بالي کثير ونقصر علی ذلک، والی الله المشتکی.

(۱۱)**پوښتنه**: ډير خلک بلکي علماء کرام د حضرت کريب رضي الله عنه په حديث باندې دليل نيسی، وايي: حضرت کريب رضي الله عنه ويلي سې زه، ام الفضل د حارث لور، په حضرت معاويه رضي الله عنه پسې شام هيواد ته وليږلم، ديو کار لپاره شام هيواد ته راغلم هغه کار مې مکمل کړ. زه لا هم په شام هيواد کې وم، سې د رمضان مياشت را برېسوه، ما خپله د جمعې مبارکې په شپه باندې مياشت وليدله، بيا د همدې مياشت په اخيره کې مديني منورې ته راغلم، حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه زما څخه پوښتنه وکړه، او بيا د مياشت په اړه را ته وويل سې مياشت مو څه وخت وليده، ما ورته وويل د جمعې په شپه مو وليده، ده مبارک را ته وويل

تا په خپله وليده، ما ورته هو شخصاً ما، او نورو خلکو هم وليده. خلکو هم روزه ونيوله، او حضرت معاويهرضي الله عنه هم روزه ونيوله، يعني په دغه ديد باندې ده مبارک راته وويل: سي موږ بيا د شنبي "هفته" په ورځ باندې ليدلي ده، تر هغه وخت پورې به روزه نيسو ، سې مياشت مو نه وې ليدلي،او يا مو له خپل حساب نه ديرس (۳۰) نه وې پوره کړي. وايې ما ورته وويل: ايا ته د حضرت معاويهرضي الله عنه په ديد او روزه باندې إکتفاء نکوی، وايې ده مبارک راته وويل سې نه دغه رنګه رسول الله صلى الله عليه وسلم امر کړي دی.

عن كريب ان ام الفضل بنت الحارث بعثته الى معاوية بالشام قال فقدمت الشام فقضيت حاجتها واستهل علي رمضان وانا بالشام فرأيت الهلال ليلة الجمعة ثم قدمت المدينة في آخر الشهر ، فسألتني عبدالله بن عباس ثم ذكر الهلال، فقال متى رأيتم الهلال، فقلت رأيناه ليلة الجمعة، فقال انت رأيته،فقلت نعم ورآه الناس، وصاموا وصام معاويةرضي الله عنه، فقال لكنا رأيناه ليلة السبت فلانزال نصوم حتى نكمل ثلاثين او نراه، فقلت اولا تكفي برؤية معاويةرضي الله عنه وصيامه، فقال لا هكذا امرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم، رواه مسلم (١٠٨٧). په دغه حديث شريف باندې دليل نيول په اعتبار د اختلاف د مطالعو صحيح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب:** په دغه حديث باندې دليل نيول پر اعتبار د اختلاف د مطالع په ډيرو وجو صحت نلري، په دغه حديث شريف استدلال نيول باطل ده.

**(۱)اوله وجه:** موږ د امام ابو حنیفةؒ مقلدین یو، د امام صاحبؒ مذهب دادہ: سې په دغه حدیث مبارک استدلال صحیح نه دي، پر اعتبار د اختلاف د مطالع، نو پر موږ واجب ده سې د امامنا اعظمؒ د نظر اتباع وکړو، ځکه د تقلید ترجمه داده سې مقلد به په مسائلو غیر منصوصه وو کې د خپل امام مجتهد د نظر اتباع کوی، او یا منصوصه وې، مګر متعارضه وی، او یا غیر متعارضه وې، مګر احتمالات ډیر لري، او یا احتمالات نه لري، مګر حکم یه نه وې ذکر سوی. لهذا: موږ په خپل سر حدیث مبارک نه له مذهب سره ټکر کولي سو، او نه توجیهات پکښې کولي سو، زموږ احنافو مبارکانوؒ و دغه حدیث مبارک ته ځوابونه ویلي دي، حتی ابن الهمامؒ سې مقام د مجتهد ته رسیدلي ده، هغه هم په فتح القدیر کې ځوابونه ورکړي دی. نورې وجې هم د استدلال د بطلان لپاره ذکر کیږی، مګر زموږ لپاره تر ټولو قوي وجه، بس دغه اوله وجه ده، ځکه هغه نورې وجې په حقیقت کې د پوښتني ځوابونه نه، بلکې د اولي وجې توجیهات دي، یعني که یو څوک ووایې: تاسو خو د مذهب تابع یاست نو ځکه یه استدلال صحیح نه بولي، نو ستاسو صاحب مذهب ولي استدلال صحیح نه په بولي، نو هغه ته احناف ځواب وایې: په دي وجه، په دي وجه، او په دي وجه یې په صحیح، نه بولي. خلاصه د ځواب داده: سې کوم علماء کرام سې دلیل په نیسي د هغو خبره زموږ له مذهب سره موافقه نه ده، نو ځکه یې موږ صحیح نه بولو.

**(۲)دوهمه وجه داده:** په حدیث کې نه په اعتبار د مطالع باندې دلیل سته، او نه د اختلاف مطالع ذکر کې موجود ده، په حدیث شریف کې ۲ دوه جهته ذکر دي،

١ **اول جهت مرفوع ده**، هغه داده (هكذا امرنا رسوالله صلى الله عليه وسلم ) مراد له دغه جملي څخه دا قول د رسول الله صلى الله عليه وسلم ده، (صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته ).

(٢)**دوهم : جهت موقوف ده**، هغه دا ابن عباس رضي الله عنه او د حضرت كريب رضي الله عنه د خبرې نه قبلول دى. اوس دغه نه قبلول هم خپل احتمالات لرى.

(١)**اول: احتمال داده**، سې ابن عباس رضي الله عنه اختلاف د مطالع معتبر بولي

٢ **دوهم: احتمال داده** سې د يوه كس ګواهي دې د ده پر مسلک باندې په رمضان كې نا منظوره وى.

(٣)**دريیم : احتمال** دا لري سې ګواهي دې هم منظوره وې خو حضرت كريب رضي الله عنه ګواهي يعني شهادت ويلي نه ده، صرف اخبار يه وكړ ،داسې احتمالات دنه قبليدو نور هم لري، نو سې يو كلام ډير احتمالات لري، په دغو احتمالاتو كې يو احتمال اخيستل او دغه كلام دليل وربانډې نيول، دعوه بلا دليله ده. ځكه سې دليل پر دغه خاص احتمال باندې نلري، لكه څنګه سې دغه احتمال لري، خو هغه بل احتمال هم لري، او هغه بل احتمال هم لري. اذا جآء الإحتمال بطل الإستدلال.

(۳)**دريیمه وجه داده:** په دغه حديث مبارک کې ذکر دی، (هکذا امرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم) مراد ځيني (صوموا لرؤيته و افطروا لرؤيته) ده، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما له دغه رؤية څخه د محلي او علاقي رؤيت اخيستي ده، دغه ژباړه ده مبارک په خپل اجتهاد ځينې کړي ده. فقهاء کرام وايي: دي په دغه اجتهاد کې خطاء سوي ده، ځکه دغه حديث په حقيقت کې پر عدم اعتبار د مطالع باندې حجت جوړيږي.

(۴)**ثلورمه وجه داده:** د حضرت ابن عباس (رض) حديث مبارک د يو جليل القدر صحابي مبارک له حديث سره معارض ده، هغه مبارک صحابي هم تر ابن عباس (رض) مشر ده، او هم يې الله جل جلاله د اتباع امر کړي ده، هغه مبارک صحابي حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه ده.

قال البيهقي: اخبرنا ابو عبدالله الحافظ و اوبو طاهر الفقيه و ابو بكر بن الحسن القاضي و ابو سعيد بن ابي عمرو، قالوا حدثنا: ابو العباس محمد بن يعقوب ثنا محمد بن عبيدالله بن ابي داود المنادى ثنا يزيد بن هارون انبأنا ورقاء ابن عمر عن عبدالأعلى الثعلبي عن عبدالرحمن بن ابي ليلى، قال: كنت مع البرآء بن عازب و عمر بن الخطاب (رضي الله عنهما) فنظر الى الهلال فاقبل راكب فتلقاه عمر رضي الله عنه فقال: من أين جئت؟ قال: من المغرب، قال: اهللت؟ قال: نعم. قال: عمر رضي الله عنه الله اكبر انما يكفي المسلمين الرجل ثم قام فتوضأ ومسح على خفيه ثم صلى المغرب. ثم قال: هكذا رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم

صنع، فهذا عمرؓ صرح بان المسلمين كلهم يكفيهم رجل واحد وقبل رجل واحد وشهادته مع انه قدم من المغرب ولم يره بالمدينةاحد.

دغه رنګه د دي حديث مبارک شل ځوابونه ما په مختلفو کتابونو کې ليدلي دی، يو اولني ځواب زما خپل قاصر نظر وو. لهذا په دغه حديث مبارک د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او د حضرت کريبؓ باندې، په اعتبار د اختلاف د مطالع باندې حجت قائمول صحيح نه ده.

و اما ما استدل به الشارح على اعتبار اختلاف المطالع من واقعة الفضل مع عبدالله بن عباس حين اخبره انه رأى الهلال بالشام ليلة الجمعة ورآه الناس وصاموا وصام معاوية، فلم يعتبره وانما اعتبر ما رآه اهل المدينة ليلة السبت فلا دليل فيه لانه لم يشهد على شهادة غيره ولا على حكم الحاكم ولئن سلم فلانه لم يأت بلفظ الشهادة ولئن سلم فهو واحد لايثبت شهادته وجوب القضاء على القاضي آه. البحر الرائق (ص٢٧٤- ج٢) . وكذا في فتح القدير (ص٢٤٣-ج٢). وكذا في إعلاء السنن (ص١١٩- ج٩).

**د تعجب او تحير خبره:** په ډيرو جديدو فتاوا وو کې ليکلي ده، سې اختلاف د مطالع اعتبار نلري، او سې پوښتنه په افغانستان، سعودي وغيره باندې ځيني سوي وی، سې موږ له هغو سره روزه او اختر جوړولاي سو، او که نه. بيا ځواب په نفي ورکول سوي وی، سې تاسو له هغو سره روزه او اختر نسي جوړولاي. او دا د تعجب خبره ده، ځکه خو يا به اختلاف د مطالع معتبر بولي او

یا به د هغو هیوادونو په دید باندې اکتفاء کوی. داسې کېدای نسي، سې هم دې اختلاف د مطالع معتبر نه وی، او هم دې له هغو سره په روزه او اختر کې شرکت نه کیږي. لهذا د دي فتوا د رد لپاره یوه پوښتنه او ځواب یه صراحة په دغه مسئله کې ذکر کوم، سې زموږ وروڼو ته صریحي جزئیه په لاس ورسي، کڅه هم ټول کتاب پر دغه مسئله جوړ دہ، او ډیرې حوالي ذکر کوم، که بعضي وروڼو ته یو څه شک او شبه پاته وه، سې هغه شبه یې ختمه سی.

**(۱۲)پوښتنه:** څه فرمایي علماء کرام په دې مسئله کې، سې سعودي عرب یو اسلامي هیواد دہ، او افغانستان هم اسلامي هیواد دہ، د شریعت مطابق د روزي او اختر اعلان کیږي، د اسلام یو عظیم رکن سې حج مبارک دہ، هغه د سعودي په اعلان ادا کیږي، او په نړی کې تر ننه پورې یو چا په حج کې دا خبره کړې هم نه دہ، سې د سعودي عرب په حساب حج نه صحیح کیږي، ځکه سې میاشت یه نه یې لیدلي، په دروغو اعلان کوی، د روزي او اختر په باب کې نوي فتوا وې داهم لیکې، سې اختلاف د مطالع خو معتبر نده. مګر د سعودي عرب والا په دروغو اعلان کوی، ځکه سې موږ د هغو په اعلان إکتفاء نه کوو. اوس پوښتنه دادہ سې موږ په پاکستان کې د افغانستان إسلامي امارت، او د سعودي عرب په اعلان روزه او اختر جوړولي سو، او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصدق والصواب:**دین اسلام هر وخت مسلمانانو ته د إتحاد او إتفاق درس ورکوی، له انتشار او تفریق څخه یې منع

کوی، که یو څوک حقیقة د امام ابو حنیفة ؒ مذهبي وی، او د نورو مذهبو خبره مني، بیا به له دغه انتشار څخه خلاص وی، له نورې نړۍ سره به پر یوه ځاي روژه نیسي، او پر یوه ځاي به اختر جوړوی، د سعودي عرب او افغانستان سره به یې په طریقة الاولی جوړوی. او دغه رنګه د إمام مالکؒ مذهب هم دا دی. د امام احمد بن حنبلؒ مذهب هم داده. او بعض کتابونه د امام شافعيؒ صحیح قول هم دغه بولي. لهذا پر پاکستاني مسلمانانو لازمه ده سې د سعودي عرب او افغانستان سره روژه ونیسی، او هم ورسره یو ځاي اختر جوړ کړی.

(۱۳)**سوال:** کیا فرماتے ہیں علماء دین اس مسئلہ میں، کہ سعودی عرب ایک اسلامي ملک ہے اور افغانستان بھي ایک اسلامی ملک ہے، اور پاکستان بھي موسوم ہے. وہاں تمام قوانین نافذ ہے تمام خصومات کے فیصلے شریعت کے مطابق کی جاتی ہیں، اسلام کا ایک عظیم رکن حج ہیں پوری دنیا کے مسلمان اس اسلامی ملک کی رؤیت اور حکم کے مطابق ادا کرتے ہیں، مطلب اس ملک کی رؤیت اور شہادت جھوٹا نہیں ہوتا، تو کیا ھم بھی سعودی عرب اور امارت اسلامی افغانستان کے شرعی اعلان کیساتھ روزہ اور عید منا سکتے ہیں یا نہیں؟

**الجواب باسم ملھم الصدق والصواب:** اسلام ہمیشہ مسلمانو کو اتحاد اور اتفاق کا درس دیتے ہیں، انتشار اور افتراق سے مسلمانو کو منع فرماتے ہیں، بد قسمتی کی وجہ سے اس ملک میں ہر سال دو عیدیں اور کبھی کبھار تین تین

عیدیں بھی منای جاتی ہیں، اس اختلاف کا خاتمہ تب ھوگا، جب ہم رؤیۃ ھلال کے مسئلے پر مذھب کے بانی سراج الامۃ امام اعظمؒ کے بات کو مانیں، اور اس پر عمل شروع کریں، وہ فرماتے ہیں کہ اس مسئلہ میں مطالع کے اختلاف کا اعتبار نہیں ہے، صحیح اور مختار مذھب کے موافق اختلاف مطالع صوم اور فطر میں معتبر نہیں، اوقات صلات میں معتبر ہیں، یہ راجح اور ظاہر الروایۃ کے موافق ہیں، لہذا سب پاکستانی مسلمانوں کے اوپر لازم ہیکہ سعودی عرب اور امارت اسلامی افغانستان کیساتھ روزہ رکھیں، اور ایک ساتھ عید منائیں.

## (پر دغه مسئله باندې دلائل او حوالي)

(۱)عن ابي هريرة رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال (صوموا لرؤيته و افطروا لرؤيته فان غم عليكم فاكملوا العدة ثلاثين)، صحيح البخاري (ص۶۷۴۔ ج۲). صحيح مسلم، (ص۶۲۷۔ ج۲).

(۲) والمراد من قوله صؤموا لرؤيته بعض المسلمين ولايشترط كل الناس، قال النووي بل يكفي من جميع الناس رؤية عدلين، عمدة القاري (ص۲۸۰۔ ج۱۰).

(۳) ولا عبرة باختلاف المطالع. كنزالدقائق (ص۱۴۷).

(۴)واختلاف المطالع و رؤيته نهارا قبل الزوال وبعده (غيرمعتبر) على ظاهر المذهب وعليه اكثر المشائخ وعليه الفتوى. الدرالمختار (۳۹۳۔ ج۲).

(۵) ظاہر الروایة الثاني وهو المعتمد عندنا وعندالمالكية والحنابلة لتعلق الخطاب عملا بمطلق الرؤية في حديث صوموا لرؤيته بخلاف اوقات الصلات، ردالمحتار (ص۳۹۳۔ ج۲).

(۶) انه لاعبرة باختلاف المطالع في الاقطار الا عندالشافعي ذي العلم الزخار، رسائل ابن عابدين (ص۲۵۳۔ ج۱).

(۷) لاعبرة لاختلاف المطالع في ظاہر الروایة، قاضیخان (ص۹۴۔ ج۱).

(۸) لاعبرة لاختلاف المطالع في ظاہر الروایة وعلیه فتوی الفقیه ابي اللیث وبه كان یفتی شمس الأئمة الحلواني قال لو رأی اهل المغرب هلال رمضان یجب الصوم علی اهل المشرق، خلاصةالفتاوی (ص۲۰۷۔ ج۱).

(۹) واذا ثبت في مصر لزم سائر الناس فیلزم اهل المشرق برؤیة اهل المغرب في ظاہر المذهب، فتح القدیر (ص۲۴۳۔ ج۲).

(۱۰) الاول ظاہر الروایة وهو الاحوط كذا في فتح القدیر وظاہر المذهب وعلیه الفتوی كذا في الخلاصة آه، البحرالرائق (ص۲۷۰۔ ج۲).

(۱۱) لاعبرة لاختلاف المطالع في ظاہر الروایة كذا في فتاوی قاضیخان وعلیه فتوی الفقیه ابي اللیث وبه كان یفتی شمس الأئمة الحلواني قال لو رأی اهل مغرب هلال رمضان یجب الصوم علی اهل مشرق، الفتاوی الهندیة، (ص۲۱۱۔ ج۱).

(۱۲) عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ( لاتصوموا حتی تروا

الهلال ولا تفطروا حتى تروا الهلال) اي حتى يثبت عندكم رؤية هلال رمضان بشهادة عدلين او اكثر، مرقات المفاتيح (ص١٩٠- ج٢).

(١٣)في الفتاوى اذاصام اهل بلدة ثلاثين يوما للرؤية واهل بلدة اخرى صاموا تسعة وعشرين يوما للرؤية فعليهم قضاء يوم واحد ولايعتبر اختلاف المطالع في ظاهرالرواية وبه كان يفتى الفقيه ابوالليث و شمس الأئمة الحلواني، فتاوى غياثية (ص٥٩)

(١٤) سئلت عن اهل بلدة صاموا ثلاثين يوما للرؤية واهل بلدة اخرى صاموا تسعة وعشرين يوما للرؤية فعلم من صام تسعة وعشرين بذلك فهل يلزمهم قضاء يوم ولا عبرة لاختلاف المطالع؟

فالجواب نعم: يلزمهم ذلک في ظاهر الرواية كما في الفتاوى الانقروية، نقلا عن خزانة المفتين، فتاوى كاملية (ص١٥).

(١٥) قال ابو حنيفة ؒ ان رؤية اهل مطلع يجب الصيام بحسبها لكل اهل الارض، الكوكب الدرية (ص٢٤٦).

(١٦) قلت في عامة كتبنا لاعبرة لاختلاف المطالع اي اذا رأى الهلال اهل بلدة يلزم ذلک اهل بلدة اخرى سواء كان بين البلدتين تفاوت اولا، وهذا ظاهر الرواية وعلى هذه الرواية اذا ثبت في بلد لزم سائرالناس فيلزم اهل المشرق برؤية اهل المغرب، انوار المحمود (ص٤٧- ج١).

(۱۷) البزازية على الهندية (ص۹۵۔ ج۴). (۱۸) مجموعة الفتاوی (ص۲۵۳۔ج۱). (۱۹) الفقه على المذاهب الاربعة، (ص۵۵۰۔ ج۱). (۲۰) فقه السنة (ص۳۸۶۔ ج۱) . (۲۱) فتح الرباني المالكي (ص۱۲۹). (۲۲) التاج الجامع للاصول في احاديث الرسول، (ص۵۷۔ج۲) . (۲۳) فتاوی انقروية (ص۱۴۔ ج۱). (۲۴) نور الايضاح (ص۱۳۴) . (۲۵) فتاوی نور الهدی. (۲۶) فتاوی التاتارخانية (ص۳۵۵۔ج۲). (۲۷) شرح الصغير (ص۴۷۸۔ ج۱). (۲۸)الكافي في الفقه المالكي (ص۱۹۱۔ج۱). (۲۹) الفقه الاسلامي وادلته(ص۲۰۶۔ ج۲). (۳۰)فتح الباري (ص۱۲۳۔ ج۴). (۳۱)المغني الحنبلي (ص۸۸۔ ج۳). (۳۲)الانصاف في معرفة الراجح من الخلاف (ص۲۷۳۔ ج۱). (۳۳)شرح مسلم للنووي (ص۳۴۸۔ ج۱). (۳۴)اوجز المسالک (ص۶۔ ج۳). (۳۵) مجموعة الفتاوی (ص۱۰۳۔ج۲۵). (۳۶) تحفة الاخوان بأجوبة مهمة بأركان الاسلام (ص۱۶۳). (۳۷) سنن البيهقي الكبری (ص۲۵۱۔ج۴). (۳۸) مسلم مع شرح (ص۲۴۸۔ج۱). (۳۹)الخيرات الجارية (ص۹۵). (۴۰)شرح الطائي (ص۸۱۔ج۱) . (۴۱)اعلاء السنن (ص۱۱۸۔ج۹). (۴۲) مجمع الانهر (ص۳۵۰۔ ج۱). (۴۳) كتاب الفقه على المذاهب الاربعة (ص۵۰۰۔ ج۱). (۴۴) الفتاوی الرضوية (ص۵۴۶۔ج ۴) . (۴۵) الفقه الحنفي في ثوبه الجديد (ص۴۰۱۔ج ۱). (۴۶)اتحاف السادات المتقين (۴۷) المحيط البرهاني (ص۳۴۲۔ج۳). (۴۸)الطحطاوي على الدرر (ص۴۴۹۔ج۱). (۴۹) كفاية المفتي (ص۲۰۹۔ج۴). (۵) فتاوی دار العلوم ديوبند (ص۳۷۴۔ج۱). (۵۱)احسن الفتاوی (ص۷۹۴۔ج۴). (۵۲)فتاوی رحيميه (ص۲۲۸۔ج۷).

۱صحيح البخاری ۲عمدة القاري ۳درالمختار ۴ردالمحتار ۵كنزالدقائق ۶قاضيخان ۷خلاصة الفتاوی ۸البحر الرائق ۹فتح القدير ۱۰الفتاوی الهندية ۱۱رسائل ابن عابدين ۱۲مرقات المفاتيح ۱۳فتاوی غياثيه ۱۴فتاوی كامليه ۱۵الكوكب الدريه ۱۶انوار المحمود ۱۷البزازيه على الهنديه ۱۸مجموعة الفتاوی

۱۹الفقه على المذاهب الاربعه ۲۰فقه السنة ۲۱فتح الرباني ۲۲ التاج الجامع ۲۳فتاوى انقرويه ۲۴نورالايضاح ۲۵فتاوى نورالهدى ۲۶فتاوى تاتارخانيه ۲۷شرح الصغير ۲۸الكافي ۲۹الفقه الاسلامي

۳۰المغني ۳۱فتح الباري ۳۲الانصاف ۳۳شرح مسلم للنووي ۳۴اوجزالمسالک ۳۵مجموعة الفتاوى

۳۶تحفة الاخوان ۳۷سنن البيهقي ۳۸مسلم مع شرح ۳۹الخيرات الجارية ۴۰شرح الطائي

۴۱اعلاءالسنن ۴۲مجمع الانهر ۴۳الفتاوى الرضويه ۴۴الفقه الحنفي ۴۵اتحاف السادات المتقين

۴۶المحيط البرهاني ۴۷الطحطاوي على الدرر المختار ۴۸كفاية المفتي ۴۹فتاوى دارالعلوم ديوبند

۵۰احسن الفتاوى ۵۱فتاوى رحيميه ۵۲تحقيق جديد مفتي تقي عثماني ۵۳حقانيه، فريديه، اقناعيه، محموديه، وغيرهم.

# (خلاصة الكلام لنيل المرام)

يا احبابنا الكرام المشاركون معنا في دين الاسلام ومذهب النعمان قظوا عن المنام وتقليد العميان كتبت لكم مسئلة عدم اعتبار اختلاف المطالع في الاقطار لتوحيدالمسلمين في الصوم والافطار على وجه الاختصار لتسهيل حصول الفائدة والمرام وتقوية المذاهب الثلاثة خصوصا مذهب النعمان و اقول لكم على سبيل التحدى إن سعيتم لحصول اعتبار اختلاف المطالع ما وجدتم دليلا قويا في كتاب من كتب مذاهب الثلاثة ابدا، ان شاءالله.

فالعجب كل العجب كيف تستدلون على اعتبارها بأفواه الناس واعمالهم تقولون

إن فلانا يقول لكل قوم مطلعهم ورأيت فلانا من علمائنا صام اليوم وما صام اليوم وسمعت ان كل من يسكن في بلدة ومصر وقرية فهو تابع لها،

يا ايها الاخوان واعتصموا بمذهب النعمان هذا (اي ماتقولون) ليس بشيء من الدلائل لا قويا ولا ضعيفا ولا اصل له في كتب المذهب كونوا من الشاكرين ولا تكونوا من الغافلين،

اللهم: ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وارنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه ولاتجعله ملتبسا علينا فنضل واجعلنا للمتقين اماما،اللهم اهدنا واهدي بنا واجعلنا سببا لمن اهتدى يا ارحم الراحمين وصل وسلم على نبينا محمد وعلى آله وصحبه اجمعين.

ختمت بعون الملك العلام في ليلة الثالثة من الشوال بحساب البلدة المالوفة الافغانستان هي ليلة الفطر بحساب الباكستان والهندوستان. ۱۴۴۳/۱۰/۲هق 2022/5/2 م.